


# د بنګ مسافري

لیکونکی

## نور محمد تره کی

خپرونه

۱۳۵۷ کال



# او مړی خبره

په دې ورځو کې او نا څېزه اثر کې کوښښ شوی دی چې دکلیوالو د ژوند یو اړخ ونښودل شي او دا هم په دې غرض چې ګران لوستونکي دخپل وطن د یوې اوبلې منطقې ا ژوند سره دفکري وحدت د تأمین دپاره آشنا شي.

هیله ده چې ګران ایکوال دوطن داجتماعي ژوندون پردې او نورو اړخونو باندې در ناا چولو دپاره موثره سعې وکړي او په دې لاره کې ورکامونه واخلي.

نور محمد تره کی

د ۱۳۳۷ کال دچاپ سریزه

# څو لنډې خبرې

سره له دې چې هره ټولنه د ټولنې د علمي پېژند نې له عمومي قوانينو سره سمه وده کوي - ورسره سم ځانته ځينې خاصې بڼې هم لري. د دې له پاره چې په يوه طبقاتي ټولنه کې طبقاتي مبارزه زر وده وکړي او د بريالېتوب په لور تاريخ جوړوونکې د خلکو هلو ځلو ته بنه لاربښوونه وشي - بايد د ټولنې د غه خاصې بڼې را وسپړلې شي او د طبقاتي مبارزې انقلابي فعالين ورباندې خبر شي.

په افغانستان کې په شعوري طبقاتي مبارزې، د علمي سوسياليزم په تيورۍ پوره سمبال لومړني سرغندوی ملګري نور محمد تره کي د افغانستان د خلکو ژوند په طبقاتي تحليل سره په هيواد کې ترټولو لومړی وار پيل کړ او په خپلو ناولونو، کيسو او ليکنو کې يې

(الف)

دا تحلیل دافغانستان کارگرو ، بزگرو او منورو ځوانانو ته په روښانه ډول وړاندې کړ. دملګري تره کي یوله هغو پیاوړو آثارو څخه چې دخپلې ټولنې ټول ژوند په ژوره توګه دماتریالستي دیالکتیک قوانینو په رڼا کې په ډیر روښان ډول دطبقاتي تحلیل له اصولو سره سم ښکاره کوي د« بنګ مسافري» ده.

« دبنګ مسافري » په داسې وخت کې خپور شو چې ددولت لهخوا پهمترقي آثارو باندې کلک سانسور روان و. په دغه وخت کې په هیواد کې ددوستو هیوادو د مرستو له امله تولیدي قواوڅه ناڅه وده کوله اودکارګري طبقې دګوند دجوړیدلو لهپاره زمینه برابریدله.

د ملګري نورمحمد تره‌کي ملګرو په(۱۳۳۷) کال کې هم دغه اثر په مکمل ډول دهیواد نه دباندې په غیر قانوني توګه چاپ او خپور کړ.

ملګري تره کي ددې له پاره چې په افغانستان کې

طبقاتي ذهنيت ښه وده وکړي، ځوانان په خپله ټولنه باندې په طبقاتي لحاظ پوه شي او لـه طبقاتـي ستم څخه دخلاصون لاره پيداکړي «د بنګ مسافري» ناول ولیکه اوخپور یې کړ.

«دبنګ مسافري» سره لـه دې چې دکارګـــرو زيار ايستونکو ، استثمارګرو اوستمګرو دژوند انـــه حال ښه تمثيـلوي او داستثمـار او ستم لـه لومو څخه دټولوزيار ايستونکودخلاصون لارهښيي ـ ددې واقعيتونو داثبات لـه پـاره هم ډېر ښـه شواهد برابروي چې پـه افغانستان کـې ملـګرې نره کـې دمترقـي ادبياتو پـه طبقاتي لحاظ دخپلې ټولنې دتحليل او دطبقاتي مبارزو دتنظيمولو او متشکل کولو مبتکر اومؤسس وبولو.

«د بنګ مسافري» په افغانستان کـې د ځوانـانـو پهروزلوکـې ستر رول لو بوي ، زموږ دټولنې حقايقو ته يـې د هيواد والو پام په ښه شان راګر ځـولی او دخلکـو

په غم کړیدلو مبارزینو ته یې د بریالیتوب له پاره امیدونه

پیدا کړي چې دغو ټولو حقایقو د ارتجاع سالاران

د امپریالیزم نوکران او د لوټمار نادر د کورنۍ ټول

مربوطین او درباریان په ویره کې واچول ـ چې د هغه

ـاو په مخ نیوې او بندولو کې یې یو دبل څخه

ـبره ـ کړه. خو وخت له وخته تیرو او د «بنگ

مسافرې» ـبرو خلکو لاس ته ورغلې وه چې بیا

په چټکتیا سره خپر یده.

تر (۱۳۴۳) کاله پورې چې ملګرې تره کي د افغانستان

د خلکو دموکراتیک ګوند تأسیس کړ د دغه ګوند د جوړیدلو

په خاطر د ځوانانو د تیاریدلو په لاره کې «د بنگ

مسافرې» اثر ډیر پیدا شوی و او د ګوند له جوړیدلو

وروسته هم ترقي غوښتونکو ځوانانو لاس په لاس ګرځاوه.

«د بنگ مسافرې» هم یو له هغو ارزښتناکو آثارو

څخه دی چې هر څومره ډیر عمر ورباندې تیریږي

ارزښت یې لا ډیر بزي. نو دا د ی ددغه حقیقت بهر ښکاره کېږي
د افغانستان دعلومو اکاډمی په بوه بل مهم اقدام
باندې لاس پورې کړی دی، چې هغه «د بنګ مسافري»
بیا چاپول دي. د دې اثر ستر ارزښت په دې کې د ی
چې په افغانستان کې همدا اوس اوس ډیر ځوانان
او علاقه لرونکي په مینه مینه «د بنګ مسافري» پسې
ګرځي. د دې ستر اثر بیا چاپول او خپرول به په داسې حال
کې ځوانانو ته لاس ته ورشي لکه چې نږدې جل وهلي ته
د یخمان یخې اوبه میسرې شي او د «بنګ مسافري» رڼا
لار به بیا هم د ډیرو مبارزانو د هلو ځلو له پاره لا ښه
رڼا کړي او دا به ددغې درندې اکاډمی بل ډیر دقدر
وړ خدمت وي.

په داسې حال کې چې د افغانستان د خلقو
دموکراتیک ګوند د خپل درانده عمومي منشي د افغانستان
د دموکراتیک جمهوریت د انقلابي شورا رئیس

او صدر اعظم له و یاره د کې رهبری لاندې سیاسي قدرت ته رسیدلی. د دغه شان انقلابي او لار ښوونکي ناول خپریدل زموږ د مبارز او بریالي انقلاب درندوالی لا ډیر وي او په خلکو باندې د مینو مبارزانو له تنلو سره متناسب د مستو مبارزو شربت دی.

ستاسو په خلقي مینه کې دوب

**حفیظ الله امین**

# دبنك مسافري

په مسجد کښې دهروخت تر لمانځه دمازيگر اوماښام په وخت لمونځ غاړي ډير وي او ديوه‌صف په‌ځای دوه درې صفونه‌دريږي. نوی ملاچې وروسته تـريوې مياشتې دکلـي‌دملا پـه حيث مقرريږ ي دمازيگر تر لمانځه وروسته وعظ کوي اوخپـل دغـه وعظ دمـاښام تر لمانځه پورې اوږدوي. دده دوعظ مهم ټکي دغه وي:
کـه څوك دمازيگر دلمانځه نـه دماښام ترلمانځه پورې مراقـبه شواووظيفه‌يې کوله نو به ډير درانه ثوابونه وگټي اودخدای تعالـی رضا به حاصله کړي ـ په‌تيره بيا کـه دماښام تر لمانځه وروسته‌يې نفلونه وکړل نودهغـه دثـوابونو اوعوضونو په‌باب کښې خورا ډير تفصيلات ورکړي او حـاضر ين خوښ کړي. په دغه وخت کښې پخوانـی ملاصاحب لږځه زړه‌سور ښکاره کيږي او کلـه کلـه نوي ملاته دسترگو په کونجونو په اعتراض ناك نظر وگوري اوبيا په‌سرڅادر کش کړي اوخپل شو ندان داسې وښوروي چې‌ته به وايې چې اوس

به په زور خپل اعتراض تهولو ته واوروي ـ او په دغه توګه به دمسجد ارامه او لـه صلحې ډکـه فضا په خوابدي واروي.
کلـه کلـه چې له مسجد نه راووځي پخوانی مـلا صاحب خپلو ځينو نيتيانو ته پـه ورو ووايـي:

دغه ملـك خورا ناروا سړی دی، زړه‌سوی هيڅ نه لري، زياتره حرکات يـې له‌شريعت نه مخالف دي ، کـه‌مرشو ځمکه به ځای ورنـکړي، هيڅ وخت مادی بيخي دوخته سره برابر په‌مسجد کـې نه دی ليدلی. دملاصاحب دغه نيتيان دکلـي په چارو کـې هيڅ واك نه لري، ځکه چې دوی بزګران دي او خپلـې ځمکې نه لري. يوه ورځ يو بزګر له دغه بل‌ځخه پوښتنه وکړه چې خلك ولې پخوانی ملاصاحب له ملايی ځخه باسي؟ هغه ورته وويل: خبرنه‌يـې دملـك لورناروغه وه ـ ملادهغې پوښتنې ته نه و ورغلی اوبيا دملـك خورزه ناجوړه شوه. پـوښتنې تـه خوبـې البته ورغلـی و خوهغه خوارکـی بی‌ياسينه‌مړه شوه او ملا ........ په هغه شپه بل کلـي ته تللـی و اوويـې نـــه کـړاي شول چې پـه هغې بـانـدې يـاسين ولـولـي. لـه دې کبلـه ملـك ورباندې په قهرشو او له بل ځای نه يـې نوی مـلا راوست اوغـواړي چې ورروسته لـــه‌هغه حـې رشې واخستلـی شي اودزاړه ملا حساب خلاص شي نونوی ملاودروي.

دنوي ملا وعظو اونصيحتو دکلي پەخلکو پەتيره بيا پەسپين ږيرو اغيزەکړې ده، دسهار لـه خوا هم څو کسه تر پاخه ځاښته پورې په مسجد کښې ناست وي، وظيفه کوي او دمازيگر لـه خواهم. خوځينې په دې ترتيب دومره پروا نه کـوي اوځرنگـه چې دمازيگر لمونځ وشي تول راووځي اودمسجد ديوال تەچې پـه مني اوژمي ښه لمر څريکې هم وي کښيني، په ورځني ژوند کښې دغه دماز يگراو ماښام ترمنځ وخت خورا خوږ وي. اوخلکك پەخورا ښەخوااوپه پوره زړەمر کې اوخبرې کوي اودغه خبرې پەهرباب ښې وي، زياتره معاملې اوسوداوې هـم پـه دغـه وخت کـښې کـيږي. يعنې ميږ په وزه اوغويی پەغوا سودا کوي او داسې نور کارونه پەهمدغه وخت کـښې کيږي . دځينو زلمو ږگرانو څو دماښام لمونځ هم کلـه نا کلـه هيرشي او پخپلو سودا وکښې تـر ډيـرو بوخت وي. خـو دماخستني لمانځه دپاره کـه مسجد ته را غلـل ـ دنوي ملا لـه خوا پـه خورا نرمـه او خـوږه لهجه ورته وويل شي چې بله ورځ لمونځ مه هيروئ او تل دخدای فرض ادا کـوئ .

يوه ورځ دمسجد دديوال په همدې لمرڅريکي ډوله ځای کښې پرانکی نومی ږگر له بنگث څخه چې (۱۹) کلن هلـك دی ـ پوښتنه وکړه چې سږ کـال دې څـه پـه نيت کـی دي ؟ دغنمو بو گـری

خومې دې ولیده چندان مزه خوېږي نه وه ځکه چې اخري اوبه
په وخت نه دي ورته رسیدلې او دغنمو دانه یې راته دنګره اوپو چه
ښکاره شوه. که دې یوه پلا نور هم اوبه ورکړې وای دسرو شپو
شومه بهدې ورځنې اخستې وای. بنګ پهداسې حال کې چې په یوه
زنګینه ستن یې لهپوندې نهازغي کښل ورته وویل چې څه وکړو وروره!
بادار ژر اوبه پالیز ته وارولې اوزموږ دغنمو دانه یې راپوچه
کړه. وروره څه نه شوویلی که وایو غوږ پرې کیږي اودغه بوګری
را باندې دریږي. ورم کال مویوه سپین سترګي وکړه او بادار ته مې
وویل چې ( سبزبرګ ) لکه باغ پالیزشپیشتو او داسې نورو ته
اوبه زرمه اړوه ،ځکه چې دغنمو وږي کوچني راځي اوهم یې دانه
نهغوښنه کیږي. مګر نتیجه داشوه چې دهغهبوګري بزګري یې راځخه
واخیسته اوپروسږکال ډیر په عذاب وم. بیا مې خو ننوا تې پرې
وکړې اوهم مې دستانهویوه مرکه اوجرګه وروستله چې بیایې
دشبانه روزدیوې ځلوزمې برخې بزګري په متې راکړه. نوروره! څوك
چې خپله ځمکه او اوبه نه لري دهغه به دغه حال وي ، نه به څه
کولی شي او نه به څه ویلی. له بیرې مو پهخپلهخوله لاس اینې دی.
پرانګې لږځه تندی تر یوکړ اووې ویل چې: ملګریه ! ددې
خبرې پوښتنه درځخه کوم چې سږکال دې څه پهنیت کې دي اوکومې

خواته ځي؟چیرته په سروشیبوکښي نس اړوي؟ تا دبزګرۍ نقل راته ډیر اوږدکړ- ښه زه پوهیږم چي ته په دې خصوص کښې هم خوړا اوږده اوږده نکلونه کوې، خو بیربږم چي د ماښام لمونځ رانه قضا نه شي او بیا به دنوي ملاپه خوله کښې ولویږو او دټولو په مخ کښې به مسو (سره سني )کړي. درځه ، درولاړ شه، اذان خو وشو، ددنیا خبرې به بیا کوو،ترتازما زړه لـه بادار ځخه درې وړې دی! . کـه زه خپل داستان درته شروع کړم او دخپل زړه پرهارونـه درته وښیم خپل به دې هیرشي . څه کوې وروره ! دا دنیا زموږ او ستاسې دپاره نه ده خدای دې په هغه جهان کښې عوضونه راکړي، بلـه هیڅ چاره نشته.

نوی‌ملاتل‌وروسته ترلمانځه خوړا اوږدې اوږدې دعاګانې کوي مثلاً وايي: دعا وکړئ چي خدای مسافرو ته خیر پیښ کړي. بیا په هغې پسې وايي، یوه‌بلـه دعا دعالم اسلام دپاره وکړئ (خدایه! اسلام ته بری او کفرته شکست ورکړې، خدایه! دظالمانوله ظلموځخه نجات راکړې او داسې نور... )

دعاګانې چي پای ته ورسیږي نو د لمانځه د ثوابونو اونفلونو دکولو په‌باب کې څو خبرې کوي اوهم وايي چي وروسته ترلمانځه چي دعاګاني هرڅومره ډیرې وي هغومره یې ثوابونه ډیر وي او دقبلیدو امید یې زیات‌وي - ځکه چي خدای (ج) په‌دې ډیرخوښیږي

چې بنده ګان یې ډیر څه له ده وغواړي.

یوه ورځ دلمانځه نه وروسته ( پښخواني ملاصاحب) خلکو ته مخ راواړوه او ورته یې وویل: زه خو لکه چې تاسوته معلومه ده درشوداخیستلو ترو ختـه پورې دلته یم اوځرنګه چې رشې واخیستلی شي او زما زکاتونه راکړئ ، بیا به دخیره سره درنه رخصتیږم خو یوشی دلته لازم ګڼم چې تاسوته یې ووایم، هغه دادی چې کوچنی اختر(عید فطر) بیخي نژدې دی اوصرف یوه نیمه میاشت ورته پاتې ده او هرکله چې تهول کال لمونځونه مادرکړي دي او په مړي اوژوندي موزه حاضروم ، نو (سرسایه) زما رسیږي او زه یې دخپل ځان حق بولم او هیله ده چې تاسو به هم هغه ماته راکړئ اوپه دغه توګه به حق خپل حقدار ته ورسیږي.

له سا ایستلو اودخپلې سپینې پګړی دوله دسمولو نه وروسته یې بیا وویل چې ځینې کسان خیال لري چې (سرسایه) نوي ملاصاحب تهور کړي . دا کار به زما په حق کې ستر ظلم وي او دتو لو څخه هیله لرم چې داترزړه و باسي چې خپله ( سوسایه) به ما ته راکوي ځکه چې دالس یوولس میاشتې لمونځونه ما درکړي دي .

نوي ملاصاحب لومړی پهخپل تندي او زیره باندې لاس را تیرکړ او بیا یې غاړې تازه کړې اوبیا رانږغ یې کړه: ( اول خوداضروري او

حتمي نه ده چې ( سرسایه) بـه هرومرو ملانه ورکوي ، خو ځکه چې دارسم او عنعنه ګرځیدلې ده چې ملاته به یې ورکوي او هرڅوك ملاتر نورو مستحق ګڼي ، نو البتهٔ ښکاره ده چې سرسایه دهغه ملاحق دی چې په محراب کې ولاړ وي او جمع ورپسې کیږي. پخواني ملاصاحب دا وینا پرخوابده ولګوله اومخ یې لـه ډیره قهره سور واوښت اونوی ملایې مخاطب اوتهدید کړ چې ژر به ولاړ شي او عرض به پروکړي او په داسې حال کې چې ټول بدن یې لـه قهره ریږدیده لـه ماجت نه ووت او مخامخ علاقه دارۍ تـه ولاړ.

بلـه ورځ بیا مازیګر دعادت په توګـه پـړانګی اوبنګ د مسجد دیوال ته دنورو خلکو په ډلـه کې سره نـاست وو. پړانګي دبنګ نشې ته ګوتـه ورووړه اوهغه یې خپلې خواته ملتفت کړ. بنګ دنسوارو ډبلی را وکیښې او په داسې حال چې لهبل چاسره یې خبرې کولې هغه یې پـړانـګي ته له بغل سره ونـیو. پړانګي ورته وویل چې ښه ورووره! دادومره شپې مویه ښه توګه اومفصل ډول نـه ووسره لیدلي زما خوتل په زړه کې یې ، داسې مې پوه کړه چې راشه دې واخیستلـه اوخومره غنم درغلل ؟ بیا یې دخپل ورغوي نسوارخولې ته واچول اوپه داسې حال کې چې پخپله ژبه یې دنسوارو ګرز له خپلو غاښو څخه پاکاوه اوشونډان یې ځمول دبنګ ځواب ته منتظرشو.

بنگڅ تندی تر بو کړاوسر یې کښته واچاوه او په داسې حال کې
چې څنګه یې بخښنه گوڼه گړوله ورته وویل چې:

زموږ اوستاسو خوداتو ته راشه نه ویله کیږي څوبیا هم شکردی
موږ وتاسې باید په هرحال کې شکر وکاږو. وروسته تر هغه چې د ملا
(زکوات)، دملك ملکي د پنس حق درکیانه رکني، تخم، دچړیانو
بنې مې ورځني وزکړې نو (۱۲) منه غنم ما ته پاتې شول. هغه
مې وړمه وږخ را په شاکړل او په کور کې مې واچول. په یوشي چې
مې طبیعت سم دی هغه دادی چې سږکال مې پوروړي دستي له لاسه
نه یسي اوشي را څخه نه غواړي. څکه چې هغو دوو کسوچې خورا په
اورسوی وم او پور یې هم لږشانه څنډېدلی دی په دغو وختو کې
لږ څه مال کوم ملك نه وړی دی اوتر اوسه پورې بیرته نه دي
را گرزیدلي. ترڅو چې دوی بیر ته راستنیږي گوندې یا به زه مړ
او یا به مې له دې کې څخه کوم بلې څوانه ستر گې نهامی کړي وې

پړانگې ومسل اودوارهٔلاسونه یې پورته وغزول اوخپله ستړیا یې
وکښله اوپه صاف او لږ څه لوړ زغ یې ورته وویل:

یې حوصله کیږه مه! تا یخپله وویل چې په هرحال باید سړی شکر
وکړي. دا چې دستي جا ترلاس نه یې نیولی لویه خبره ده او څوا ستر
نعمت دی ته یې ولې غم کوې؟

دوې خوېندې لرې! ژر به درلوېږې شي او بنه غټ ولو ربه پرې واخلي! بیا کولای شي چې په هغو پیسو یو ځمکه رانیسي او ټول عمر به هوسایې په خپله ځمکه تیر کړې اوله دغو خواربو او مشالفتو څخه خلاص شي.

د پرانګې دځنګ سرې (لالوان لالا) پر را زغ کړل چې:

سیټ دی ، میټ. داسې دو ې خو یندې مې درلوداې لکه دی چې بې لرې والله که مې یوه شپه هم و چه دو دی خوړلې وای. زموږ په شان خونه دی چې دواړ ورکولو په مشالفت آخته شوی وي. اوه ! خدا ی دې دتورې هرهد په دوزخ کې واچوي-زما او دکوژدې سره څه مناسبت؟خو ارسرې اوبرګ بې سپې -اوس د نه پیتې نه شوړای بوې خوا ته مې مخه چا ته نه اوړې اونه ولور ورکولا ی شم اونه بې پریبنودلی شم. ځکه چې ټول خلک به مې په لعنت سترګې وګازې اوه خد ایـــه! څومره منحوسه ورځ وه چې زما دکـوژدې تکان بې وکـړل. زمانه هیر یږي چې سپین ږیري اکا مې را ته ویل چې دا د منادی تکان نه د ی بلکـه دیو ستر غم درا تلو اعلامیه ده ، ځکه دولور دا دومره دروند پیتې څوک پر اوږو اخستلی شي . رښتیا چې دده خبره شوه.

بنګ لـه دغـه سرې سره دهمدردی اظهار وکـړ او دا چې دا غمونه اودرانـه پیتې ټول زلمیان پرغاړه وړونکي دي ورتـه وویل. بیا بنګ دیوبل سرې پـه ځواب کې وویل چې غـوارم ژر ولاړ شم

او دا خو دانسې غنم دسپین سرې مور اوخویندو دسرو شپو شومه کړم او په خپلـه غوا ړم چې د کندهار ښار تـه ولاړ شم او هلته خـپل نس واروم او هم که وشوخه پونښ راوړم. اوس یوازې دې ته معطل یم چې یوخـه بوتـې کورته راوړم. مسجد، ملا اوخان کره یوخـه بوتي یوسم یعنی دهغوی دبوتود اشر ورځې تیرې کـړم . کـه نـه وي بیا بـه هغسې اربکي را تـه جوړ کړي لـکه چې پروسږکال یې را ته جوړ کړي وو او دیر ې شپې مې نه هغوخخه ځان نه شو خلاصولی.

دو ی داخبرې سره کولې چې دآسانو شیشنهارشو او خو رادو ړ ې ولاړ یزي. په یو ه ګړۍ کې سپاره را ښکاره شول.دچاخولۍ په سروې او دچانبې نوې لو نګۍ اوچا دریشی کړې وې، او چا خړ کالـي آغوستي وو. تولووپیژندل چې دغه سپایان دي اودچادعرض کولوله کبله راغلي دي. تول پنځه کسه سپاره دي .

چې دمسـجد ددیوال مخـې تـه رانږدې شـول ، نو یو سپیـن ږیري پرحاضرښوږغ وکرچې دمحصلانوآسان ونیسئ ! . سمدستي نیالـۍ اوبا لښتونـه راوړل شول او نسبتاً پـه یـولوړ ځا ی باندې ددو ی د پاره نیالۍ واچولې شوې. یو سپین ږیري وویل چې علاقدارصاحب در پر مخ شه! په داسې حال کې چې تول په یې ووعلاقدار پرنیالیو کښیناست اوشاوخوایې وکتل، درې کسه محصلان ورته دنیارسۍ په حال ولاړ دي.

دعلاقدارۍ میرزا صاحب څو کسو سپین ږیرو ته چې څوك ورته ولاړ وو اوچا خپل ځادر تر ځان لاندې کړی اومخامخ ورته ناست وو - وویل چې موږ خو ستړي شوي یو، ځوله لاره مو په یوه سارا وهلې ده په تیره د علاقدارصاحب رګونه خو داس د سپرلۍ په اثروج کلك دریدلي دي. ناسې ولتهوئ او په یودوو غټو ځیني کاسو کې یو څه نبې نودې شیدې چې غوړي اوبوره هم پکې ګډ وي - راوړئ چې لږ څه خو مود ورنو او اوږو کوفت وخیژي.

په دې حال کې ملك صاحب راغی اوعلاقدار اوچت ورته ولاړ شو اوپه غیږ یې روغبړ ورسره وکړ. ملك دعلاقدارتر څنګ کېیناست او په یوه غوړه لهجه یې له علاقدار نه پوښتنه وکړه چې:

خیرخوو ؟ علاقدارصاحب څرنګه او دڅه شي دپاره موزحمت کښلی دی! ؟

معلومه شوه چې پخواني ملا صاحب پرتول کلي با ندې چې دده حق یې پوره نه دی ورکړی-عرض کړی دی. علاقدار ملك ته وویل چې علما خو ددین ستنې دي کهدوی سره مرسته اوکومك ونه شي اویا څه ناڅه خپل حق ورنه کړی شي نودوی خواران خو به برباد شي موږ اوتاسو ته لازمه ده چې ددین ستنې تل ټینګې وساتو ځکه چې ما اوریدلي دي چې، دهمدوی تر پښو لاندې جنتونه پراته دي.

دملک په امر دعلاقدار دپاره سم دلاسه یوپسه اوهم دوه درې چرګان حلال‌شول او په‌خورا برم دیګونه باندې‌شول . ماښام یوڅونه سپین زیري چې دملک نیتیان او په کلي کې‌شته من بلل کیدل راوبلل شول اوپه خورا خوشحالی مجلله میلمستیا وخوړل شوه . وروسته تر دوډ ی‌ملک وویل چې: علاقدارصاحب! خدا ی دې تاسې زموږ له سره نه کموي که تاسې دچادحقوقو پوښتنه ونه کړئ اولس به‌سره وخوري او هیڅوك به دچا په حق قایل نه شي.موږ به خپل پخوانی ملاصاحب خوشې نه پریږدو او قانع به یې کړو. تاسو دخپل راتګ او ددې دومره زحمت ایستلو په مقابل کې خپله لونګی واخلئ او که بل کوم مانع نه وي نو سهار دخیره سره خپل مرکزته تشریف یوسئ ، ځکه چې زموږ کلی ډیر خوار د ی او په خلکو پورې څه نشته چې تاسې ته‌ستاسو له‌مقام اوحیثیت سره‌سم میلمستیا وې درکړي. بیا علاقداراوملك‌دواړه یوې بلې کوټې ته ننوتل اووروسته له یوڅو دقیقو بیرته راووتل. ملك حاضرینو ته وویل چې:

، علاقدارصاحب خورا ښه سړی اوخانزاده دی، زړه سواند ی هم ډیر د ی، داسې فیصله وشوه چې‌دکور په سرباندې‌یومن غنم‌دعلاقدار صاحب دپاره ټولوو اوده ته به یې دمیلمستیا په ډول ورکوو. ځکه‌چې موږدده میلمستیا ښه ورنه کړ ی شوه اوهم باید دهربالغ نارینه سړي په

سربانديدوه گون نوت پخوانـي ملاصاحب ته تهول کړو او هغه به هم په دې توگه خوشحالـه کو او پـه دغـه ترتيب به جنجال خلاصوو.

په ځينو حاضرينو کې گونگسي شواو په دغه خبره يې اعتراض وکړ چې دادونه بار نه شو وړای ، خو ددې د پاره چې دا اعتراض عموميت پيدانه کړي سمدلاسه د ملـك په اشارهيو دوه تنه زلميان را وپرزول شول او په دغه نامه چې سپين سترگي دي ، د محصلانولـه خوا بنه وډبول شول او نورو تبديل اوپه دې توگههغه تجويز عملی او غنم را غونډه کړی شول . ټول (۵۴ ) منه غنم شول چې د (۲۵) منو غنمو قيمت علاقدار او د(۱۵) منو ( سرکاتب ) او د (۱۴) منو قيمت ملـك واخيست . تقريباًدرې نيمسوه(۳۵۰) افغانـی پخوانيملاصاحب ته تولې شوې چې په هغوکې هم ملـك خپلـه برخه وکـړه او په دې توگـه دا معاملـه سرته ورسيد لـه اوکلی لـه غمونو څخه خلاص شو .

په دغه ډول دبنگث خوارکي له کالنيوځا صلاتوڅخه يـوبل من غنم هم کم شول چې دده او دده دموريه زړهيې تور داغ کښيښود . بنگث له ځان سره فکر وکړچې په هره توگـه چې وي بايد زر ترژره لـه دې کلي څخه ېنې وکاږي او بل ځای ته شبوه شي . نو لو مړی ملا ته ورغی اوورته يې وويل چې ملاصاحب ! زه غوارم چې زر لـه دغهځای نه لاړشم اوتر بهرلي بورې سترگي بيامې کړم نوکه ماته

اجازه را کړئ چې ز ه دوه دري غوزي بوتي دمسجد دپاره راوړم نو بنه به وي
چې په د غه ډول دمسجد حق پرځای کړم. او په همدغه ډول يې دملك
کره دوه دري غو زي بوتي ورو ړل اوځان يې ددوی له اينده ملامتی
او جزا نه خلاص کړ. بنګ د ځپل عزم نه پرانګي ته هم خبر ورکړ.
هغه يوځه په خشونت او زړورتيا سره ورته وويل چې نه به خواستغی
کيږي . څو ورځې ودريږه او له نورو خلکو سره لاړ شه چې
هغه هم تا غونډي دنس اړولو دپاره نورو ځايو ته درومي او پرمړي او
ژوندي خوبه دي ځپل خلك حاضر وي. خوده وروسته ترهغو چې
څو معاذير بې وويل له پرانګي څخه بې له دې چې دهغه خوښی
اورضا ته وګوري درخصتيدو په هڅه را ولاړشو .

دبنګ موربوځه نيني ورکړې وې او هم يې يوځه وچ توت
په نينو کې ورګډ کړي وو او په بنی کې يې ددهله زړو کاليو
سره يوځای اينبي وو. مانبام يې مورسوك سوك لړي او دسترګو
اوښکې پر دواړو ګوتو پاکوي . بنګ چې په خونه ورننوت له مور
څخه يې دژړا علت وپوښت . هغې دژړا په حال کې په ژړغونکی
ږغ ورته وويل چې يو سر يې ، د ښمنا ن مو ډير دي ، ولې
به نه ژاړم . ته يوازې دروې ا زما زړه به تر هغې پورې په هوا وي
ترڅو چې ته بيرته راګرزې. بې کسي زو رغواړي چارچا پيره را ته

لیوان ناست دي. هر یو دغو دوو نجونو ته سترګې ر ډې نیولې دي چې په څه ډول یې لولپه کړي او درا نده ولورو نه پرې وا خلي. زویه ! یو څه له ځان سره پام کوه ! تل پر لا رې په یوه کلي کې شپه کوه ، د شپې مزل مه کوه ، کوښښ وکړه چې پر لارې ملګري مونده کړې ! آه خدایه ! ته زما دزوی نګهدارشې !

ددې الفاظو په ویلو سره یې مور په ورت ورت وژړل او دواړه نجونې چې نه پوهیدلې چې مور یې څه وایي په ژړا شوې . بنګ د یر کوښښ وکړ چې خپله مور اودواړه خویندې دلاسه کړي اودوی ته داډ ورکړي، مور یې په ژړا کې وویل چې خپله نیستي او خواري مې ژړوي. که مو زدسږوشپو (ژمي)خوړی ( ازوقه) درلودا ی، ولې بېرا څخه د سترګو تور جدا کیده . که موږ یو څه خپل پټی درلود ی نوولې به دا حال وا ی . ستا پلا رنه بېمې تل ویل چې سریه! دهلك دېاره یو څه ځمکه واخله ! صبا بېمریږي اوبیا به دې زو ی دربه دراو حجره په حجره ګرزي! دهٔ نه بوازې ځمکه وانه خیستله، بلکه هغه نیم من تخم ریز چې یې درلود، هغه یې هم له لاسه ورکړ- اوس دغه د ی هغه زما خبره شوه . خدا ی خبرد ی چې په کوم مسجد یا په کومه شپله کې به دې ساوخیږي . اوه لویه خدایه ! چې خولې دې راکولې خوررزق به دې هم ورسره را کاوه دا څه حال دی ......

يوه ګړۍ وروسته يې مو ريوې لورته وويل : ورشه هغه دحيرات لړي غوبې چې ياتې شوي دي په کتمې کې واچوه چې ترسهار پورې پخې شي ، هغه چې څې بايد دلومړۍ غرمې ګوله ګۍ خوتر ملاوتړي ، وروسته تر هغه چې هر څومره لوږې ور باندې راځې ، راځې به خداى دې بې مل شي . سهار شو عادتاً چې مسافر له کوره وځي دکلي سپين زيري او نور دمسافر خپل خپلوا ن او کهولونه له کلي نه د باندې راوځي او د خداى په امانى د پاره يوه لوبه د له جوړ مشي . هر مسافر د قرآن شريف نه لاندې تيروي او بيا هر يو د خپلو خپلوانو او نورو حاضر يو سره دسترګو په اشاره اودسر په کړولودخدا ى په امانې کوي په دې حال کې دوړ و ، بنځو او سپين زيرو دژړا غوږ پورته شي او دفراق اثرات دومره زور او درانده نه وي څکه چې هر څوك د خپلو خپلوانو دفراق په درد اخته وي او څوك پخپل غم کې يوازې نه وي . خوله دې کبله چې بنګ تر نورو مسافرو دمخه او وختي څي نو دده دخداى په امانى دپاره غير د ده له مور او دوو خوېند و او يوې تورى نه بل څوك نه وو راغلي . دبنګ مور داله خپلې بې کسى نه انګير ي او له سترګو يې اوښکې داسې راخوټ کيږي لکه چينه . دخداى په امانى مراسم دد ې دخپلې خونې له مخې اجرا کيږي تو لې څلو ر نسجونې او بنځې دي او بنګ يې په منځ کې ولاړ دی او ملاتړي .

مور یې بنگ ته وویل چې زویه! یووارورشه. دملك اوملا صاحب ته رخصت را واخله! ځکه چې هره گړۍ مو لاس تر لاندې دی او بیا کش را سره کوي، مری اوژوندی اومه او بده پیښیږي او په کوچنۍ او نه څه خبره باندې موځوروي. هغه تیر کال دې نه دي په یاد چې پخپله تا ته یې څومره آزار در کړ او هره پلا به یې درته ویل چې د حق دار حق نه پیژني او دمشر مشروالی ته هیڅ غاړه نه ږدي. دوی شپر اوږې وزي یې به غم کې نه را څخه بوتلې؟

بنگ د مور نصحیت ښه و مانه اوښی یې هغه د خونې له مخې سره پرېښودله اوپه منډه دملك کره ورغی. دملك ناظر ورته وویل چې طالع دې بیدارې دي. خان صاحب اوس دستي راوځي او کومې خوا ته ځي. دغه دی اس یې زین کړی ولاړ دی. هغه و چې ملك راووت او بنگ یې په لاس ورحمله کړه او هغه یې خپلې خولې ته دبنگلولو دپاره نژدې کړ. ملك ورته وویل چې: (کومې خواته لکه چې بیا سترگې نها موې. خدای مو خوار کړه! تاسو ولاړ شئ او خپل غمونه او جنجالونه ټول موږته را پرېږدئ. په کلي کې خوشل ماتې گوډې پیښیږي اوددې ترله اړول خودونه آسانه کارنه دی. ورشه یوځوروبی راوړه. دلته یې له ما سره کیږده څه! که کومه خبره پیښیږي له په هغې کې به یې در مجرا کړم. که په ما باندې دې

اعتبار نـه وي لـه خپلـي مور سره يې کيـږده. پروسږکال خومې ډېره‌درته وسېله او ستاتپول غمونه مې پرې کړل او بيا مې په هغه کې په ځو حوارېو دوې وزې درځخه بوتلې چې مور اودوارو خوينـدو دې پرې وژړل . دا درته وايم کـه دې سږکال په کور کې پيسې نه وي پرې ايښي او غم درباندې راغی ، نو يقين وکړه چې يوه خور بـه دې چانه ورکړم اودهغې نه ولورځخه به خپله غاړه وباسم اوهغه وخت به دې بيا څه گيلـه نه وي .

بنگ ورته مزغی ( مغزي ) کوز نيولی و اوپه خورا ژړغونکي خو په زور زغ بې ورته وويل چې ته مو مور وپلار يې ! هرڅه چې ته کوې او کول دې موږ مخې ته نـه درتلـو ، خودا چې زموږ دوې لنگی وزې چې هغه زموږ لوغزه وه بوتـلې اوموږ دې په وچ حلق پرېښودلو-تر ډېرو پورې به مو هېر نه شي، ځکه چې‌تپول دوبـی موږ لـه نورو کورو ځخه شلومبې راوړې او تود وځه‌مويه خورا زحمت سره تېـره کـره. هيلـه ده چې سږکـال بـه په ښـه خوارۍ واوړم او دومـره وگتمم چې ستا غاړه پرې اوباسم .

ده چې خپلـه خبره خـلاصولـه دملـك ناظر پرې را منده کړه او غوښتل يې چې دده دد ې بې ادبی نتيجه په لاس ورکړي او پرمخ بې به ځپيره ووهي ، خو ملك ورته ووېل چې دد ې سپين سترگی

قصور بـه هغه وخت ورځني اخلو چې دی لـه مسافری نـه بير تـه کور ته را وګـرځي. اوس څه مه ورته وايه ! ځکـه چې په مسافری ځي او بيا به يې تول وخت پهخواشيني تيريږي . زهخوهم داسې بې رحمه سړی نه يم ـ دمال غل به يې يم ، مګـر دسر بې خيري خوبې نه غوارم ـ ځکـه چې دا هم ددوی برکت دی چې غنم مې په خونو کې نه ځايږی او علاقه دار اوحاکم را ته پهدرنسترګـه ګوري . هلـك دی يوه خبره يې وکـره ودې کړي، په پسرلي به دغوږو پيچ ورکړم .

ملـك آس تـه پونده ورکړه اوپه داسې حال کې چې غمجنه بې په هوا ښوروله لـه سترګو پناه شو.

بنګ ژر دملـك دکور له مخې دملاووره تـه ورغی اواحوال بې ورکـړچې دخدا ی په امانـی دپاره راغلی دی . ملاپه بيره راووت او ورتـه يې وويل چې: دا څرنـګـه په مسافری ځې ؟ نه دې سپين زيري نه دې تورزيري ، نه دې عالم اونه دې پير دروبالـه . تا خو بايد يوه کاسه تياره کړې وای، او دا پنځه کسه دآب خاوندان بـه دې غـوښتې وای اودهغوی دعا بهدې اخيستې وای.چې خدا ی له مسافری ځخه بنهګټه درکړې وای . نور که دې له وسه نه کيدل دونه خو بـه دې کړي وا ی چې خپل عالم او پيش امام دې درغوښتی وا ی او په لاس بـاندې دې او به ور اچـولـې وا ی . پـهرښتياچې اخره زمانه ده اودعلما وقدر کم دی

کـه نه وي خو چې دال فقر دې کولی هم یوه کـاسه خو به دې تیاره کړې وای.

بنګ داعذر ووایـه چې سږکال یې هیڅ قروت (کروت) اوغوړي نه دي کړي او داچې لوغزه یې ملـک ورځنې بیولې وه اوهم داچې په کور کـې هیڅ شی نه لري، حتی په خونه کـې یې لوخې اچولې او په هغو باندې بیدیږي او هم یې دا ورته ووېل چې لـه ډیرې نیستۍ او مجبورۍ لـه املـه دومره وختي په سفر دورمي او سترګې نهاموي.

خو ملا ورتـه ووېل چې زه دې څه کوم پخپلـه بـه ښه ښکاره شوی وا ی. په دې کلي او نورو کلیو کـې ستا په شان ډیرخلـک شته مګر هغوی داسې دسېې پـوست والله که پرمخ غوړولی وي لـکـه تا چې په مخ غوړولی دی. په اصل کـې دعلمأو په قدر نه پوهیږې.

وروسته له یو څه مکث څخه یې بیاورته ووېل چې: څه! هرڅه چې کوې کوه یې! خو دومره درته وایم چې: لومړی یو څه سپین سان پخپل کورکې او یا یې زموږ کـره کیږده، ځکـه مرګ اوږوند سره تړلي دي، نه ویل کیږي په کارشي. موردې سپین سرې ده، بیا به څوك په کفن دفن پسې ګرځي. بل دا چې لـه هغې خوا ماتـه یـوه ښه سپینه پګړۍ درسره راوړه اوهم به دنسوارو یو ډبلی [illegible] سره راوړې چې زما دا چا په ماجت کـې را څخه پټ کړ.

ملاصاحب چې دا ویل حال سوله دخپل څادر په پلو یې بنګ دري څله سوکه سوکه وواهه او همیې په مخه په اوږوکې وزووواهه. په دې توګه یې دده دپاره دیوې ښې مسافرۍ دعا وکړه.

بنګ دملاصاحب له دغه منعیت نه خورا خوشحاله شو او دکورخوا ته چې مور او خویندې او ورۍ ورته منتظرې وې - را رهي شو ده په لنډ صورت له دوی سره خدای په اماني وکړه او رخصت یې ورځنې واخیست او دقرآن شریف نه لاندې چې دخور په تیکرې کې یې دواړو خویندو جګ نیولی و تیر شو او بیې له دې چې ترشا بیرته وګوري دکلي لویې لارې ته را شیوه شو او مخ په کندهار روان شو. پر لارې تر ډیره حده پورې دمور او خویندو کریږې ددده غوږ وځخه نه وتلې او ... بلا به یې زړه پرې وایشید.



بنګ دیو څه مزل نه وروسته په یوځای کې دیوې چینې په غاړه یوه ګړۍ کښیناست او له (بنی) څخه یې یوځه نیښې او توت را وکښل او هغه یې وخوړل. فکر یې وکړ دا به ښه وي چې دا دو دی یو مل وخت ته وسپموم او که کوم کلي ته ونه رسیدم نو به په هغې خپله ګذاره وکړم.

ده شپه په یو کلي کې تیره کړه، سهار وروسته تر لمانځه بیا په لاره رهي شو. وروسته تر دوو، دریو ساعتو مزله یوې لوې ته ورسید او غوښتل

یې چې له هغه ځای نه شیوه شي. په دغه وخت کې یوزغ پرې وشو چې : ( ودریږه! اوشا پیتې‌دې واچوه!) .

بنګ چې خپلې ښې خواته وکتل، ګورې چې درې ځلورکسه یوې لوېې ډبرې ته ناست دي اویوسري دتوپك خوله پهده باندې را څورنده کړې ده ، نوسمدستي په دې پوه شوچې دا غله دي او په تلوار سره یې بنې په ځمکه کیښودله .او دواړه لاسونه یې‌اوچت ونیول. یوه غله پرې را زغ‌کړل چې هلکه! ملګري دې شته اوکه نه؟

هغه وخت‌چې ده د( نفې ) ځواب ورکړنویوغل ورته را نژدې‌شو او دده په رښکې پګړی یې لاسونه ټینګ ور وتړل او (بنې) یې ورسره را واخستله اوامر یې ورکړچې دهغې ډبرې په خوا روان شي.

له غلونه یوتن وویل‌چې :دغه خوښه‌غښتلې‌زلمی ښکاره کیږي که یې زړه دزمري و او متې یې قوي اوغښتلې وې نو زموږ دپا ره یو ښه ملګری کیدای شي، خو په دې شرط چې د.... قبیلې ځخه نه وي . بیایې دبنګ ځخه پوښتنه وکړه چې :( په بنې کې‌دې سره‌دي او که سپین؟)-یوه‌غله ژر ژر دبنې خوله خلاصه کړه او چې و یې لیدل کوم دکار شی په کې نشته، نو ویې ویل‌چې‌دې حرمونی خوبې له یو ې لپې نینواویوځو دانو توتانو نه نورڅه‌په بنې کې نه دي اچولي. یوازې یوه جوړه زاړه خیرن کالي پکې‌هم شته، نوبیا یې بنې‌ته ځادر

وغوړاوه او بنی یې وربانديې را ټشه کړه.

یوه‌بل وویل چې: ( ترملایې هم یوڅه غوټه ښکاره کیږي‌ناسوو ګوړئ ګونديې دروپو همیانی وي )

یوه بل وویل که‌یې دومره‌روپی‌درلودا ی نوولې به‌دومره‌خوار‌وزار‌و.

بـل یوورته راولاړشواو ژړیـې په هغې غوټـې باندې لاس وواهه ګـوري چـې یـوه نیمه خمیـره دودۍ ده‌او پـه مینـځ کـې یـې یوڅه غوښې دي.

ـدادې لـه کومه کړې؟

ـ دامې‌موږ راکړې‌وې‌چې پرلاريې باندې یـې‌دبودوو ورڅوخوري‌کړ م.

ـ څه وخت لـه کوره را وتلی یـې ؟

ـ پرون سهار.

ـ نودې ولـې دا تراوسه‌پوريې نه دې خوړلې؟

ـ دا مې سپمولې، فکر مې کاوه چې‌په‌یوه تنګسه کـې به‌یې خورم .

ـ دانولـکه چې زموږ په قسمت دي.

بنګ ورته وویل چې څه ښه یې ویلي‌دي چې (سپـمولې سپوخوړلې) داویـنا یې لالـه خـولې نـه‌نـه وه را ایستلـې چـې یـوه غلـه ور ته په مخ بانـدې تـرنګ څپیړه ورکـړه.

ـ لـه کومه راځې؟



- له غزني څخه .

- چیرته درومې؟

- کندهار ته .

- دڅه دپاره او هلته څه غواړې؟

- دخوارۍ ، غریبۍ دپاره اونس اړوم او خواري او زحمت کاږم که مې دموراودوو خویندو دپاره یو څه پوښی برابر کړم.

- خویندې دې ښکلې دي او که نه ؟ ما ته به یوه رانه کړې ؟

- دغرونوخلک چیرته دسمې دخلکوسره دوستي اوخپلوي کولی شي.

تاسو خو لکه د غرونو لیوان داسې یاست .

بیا ترنگشوېوه په څېره په مخ وواهه. یوه بل دغو نورو ته وویل چې اجازه ورکړې چې یو کارتوس یې تر زړه ور وباسې ، خو دغلومشر له دغه ډول اقدام او جرأت څخه منع کړل.

یوه بل غله وویل چې څه یې کوو چې خوارکی وژنو، خوله یې لږه په واك نه ده، که نه نورخو خورا ښه زلمی دی، پریږدئ چې مور پرې بوره نه شي.

دغلو مشربنگک ته په ځیر ځیر وکتل او په یوه تهدید امیزه لهجه یې ور ته وویل:

څه تصور کوې چې موږ گوندې غله یو؟ موږ دې خدای نه غله

کوي ،موږ خپل دښمن ته لاره نیولې ده. هره گړۍ دا هیله کوو چې په دې لاره را شي او پخپل مردك ور ته تېر په هغه ډول سورې سورې کړو خرنگه چې ده زموږ داکا د زوی راکړی و. بیا یې په تفحص امیزه لهجه ور ته وویل!

ـ گل خان پیژنې؟

ـ کوم گل خان؟ هغه دبرکلي! ؟

ـ هو! هو! هماغه گل خان ـ هغه چیرې و؟

ـ هغه خوما پنځلس شپاړس ورځې پخوا هغه وخت ولید چې دعلاقه داردبوتهو اشرو او موږ ټول ورغلي وو. یو بوړی ټوپك یې په غاړه‌و او کار یې کاوه. ده‌هم وېل‌چې زه دښمن داریم، ټوپك له غاړې نه شم اچولای.

هو! هو! همدغه سړی دی. ته له موږ سره څه مرسته کولی شې؟ که موږ تا خلاص کړو او دژمي ټول خرڅ هم درکړو، نو ته به دغه گل خان له موږ سره مر کړې که یه؟

بنگ په لوړ اوصاف زغ ورته وویل چې له هغه سره خوزه اوبا زما قوم هیڅ ډول دښمني نه لري تاسو ته معلومه ده چې که دگل‌خان خپل خپلوان خبرشي چې ما دده په وژلو کې مرسته کړې ده نوالبته دوی به نه یوازې زما بلکه دټول قوم دښمنان شي او یوبه

دبـل په وژلو پسې ګـرځي او دغه سلسلـه به دوام پیـدا کـړي او بو لوی مصیبت به مخې ولاړشي، چې البته دغسې فجیعانه وضعیت تاسو هـم نه غواړئ.

ددې دلـې مشر چې یو پـوخ غوندې سړ ی معلـومیده دبنګ خبره په خوند اوهمد ردی سره واوریدلـه اووروته یـې وویل: زور نه درباندې راوړو! کـه دې منلـې وا ی سنـا به په کـې ګتـه وا ی او په هوسایـی به دې دتول زمـي خرڅ ګتلی وا ی. نو چې نه یـې منې څه! پـه مخه دې ښه ! مګـر بوشـی د ی. کـه چیرې بیر ته ګرزیدلـی وې او ګل خان نه دې دانکل کړی و، نو ته په دې پوه شه چې زموږ هم درته دبدی لاس د ی او په هغه دول سلوك به درسره وکړو ، کوم چې لـه ګـل خـان سره مـونیولی د ی .

وروستـه لـه لږ سا اچولـو دغلومشربیا وویل چې: موږخوګل‌خان ناحقه نه وژ نو، چې پر هغه به ستاړره وسوځي. لومړی تیری‌اوتعرض دده له خواشوی‌دی : زموږ دکورنی یوه ځوانه کونده دده ورورو‌تښتوله. څومرکې موږ‌ې وکړې ښځه یـې په لاس را نه کړه اونه‌یـې‌تیره را سره وکړه. سربیره په دې د کوندې لیورېوه ورځ سره له څونورو‌کسانوورغی او پرګل خان یـې خط را وکیښ چې یا‌به مو تیره کوې او یـا به خامخا کـو نده بیرته په لاس را کوې. خو هغه یوه هم ونه منله اوسربیره په دې یـې تو بك

هم پرې راواراوه او دز په ټټر کې بې وویشت چې ځای په ځای
بې سا وختله او مړشو . ښایې دانګل بهتاسې هم اوریدلی وي .

هو! اوریدلی مو دی ، چې تا دګل خان نوم واخیست زه پرې
پوه شوم خو زه ستاسې په مینځ کې هیڅ کار لرلی نه شم. زه یو خوار
بزګریم، نوځکه لرمنه بې اوبه. په دغې وچه منده باندې موګذاره ده.
پرې مې زده چې خپله لاره وهم.

بیا دغلو مشر لس افغانۍ له خپله جیبه را وکښلې او په داسې حال
کې بې ورکړې چې یو بل غله بې لاسونه خلاصول او دغه پیسې بې
دده دنینو او دو دی قیمت وباله.

بنګ په داسې حال کې چې خپل زاره کالې بې په بنې کې
ځای په ځای کول، په زړه کې بې له ځانه سره وویل : ښه شو چې
دالس افغانۍ خو بې را کړې اوکه دا یې نه را کولای ، نوما خو په زور
اخیستلاې نه شوې او ما به څه کول؟ څه ښه یې ویلي دي : (دلیوه له
خولې نه پښه ختلې هم ښه ده ) ـ بلامې په هغو یو مو تې نینو پسې .
اوس چې یو کلې ته ورشم ددوو افغانیو لم به واخلم ، چې د مزله
طاقت را کړي . په دغه وخت کې دو دی ور په یاده شوه، دغلو مشر
ته بې وویل: چې که چیرې یو څه پاتې شوې وي هغه بیرته
ورکړي . هغه یو یل دوه ګیزنوڼ ورکړ او ورته بې وویل چې :

بیربزم چې اوس دخپلو لاسونو ترلو تاوان راځخه ونه غواړې ځه !
ورك شه ! زیاتې دې څه شولې را سره کړلي دي.



بنګ له ځانه سره چرت وواهه چې منه‌دی عمومي سرك ته ځان ورباسي اوپه سرك باندې لاړ شي ځکه چې دا یوه پاچاهي لاره ده او خطر پکې ډیر لږ دی اوپه دغه ترتیب به دغل غدی دسرداری نه خلاص شم. خو چې بیایې فکر وکړچې سرك خو ډیر اوږد دی او دده مزلونه به ډیر اوږده شي، نو به همدغه لاره تګ به بې غوره وباله . په پای کې یې قطعي فیصله داسې وکړه چې دا غیر معروفې او خطرنا کې لارې پرېږدي او عمومي سرك ته ځان ورسوي، خوبیا پرلارې چاورته وویل چې دسرك په خوا وشاکې کلي دومره سخي طبیعته او مسافر پالونکې نه دي لکه چې دداسې لارو دشاو خوا کلیو خلك دي ، ځکه چې هغه تل دلارو یو او مسافر و دلاسه په عذاب وي او هره ګړۍ یې مسافر ځوروي، مګرسره له دې هم دده خوښه او میلان دسرك پرخوا ډیر شو، ځکه چې دده په مغزو کې دا فکر پیدا شو چې ګوندې یوڅوك به خدای را باندې مهربانه کړي ، په موټر کې به مې ورپا بوځي ، نو دې هیلې دی خورا تشویق کړچې ژر ځان سرك ته ورسوي .

بنگ شپه په‌لاري عمومي سرك ته ورسید، دسرك په خوا كې یوځو دكانونه دي‌چې ځینې یې غذایي شیان خرڅوي په تیره بیا دتناره ژیړو ډوډیو ددهزره له ورایه یوور او په تلوار بې ورځنې پوښتنه وكړه:

ـ دا ډوډۍ دخرڅلاو دي؟

ـ هوا ځان ته خومې نه دي ایښې.

ـ په‌څو دي؟

ـ لویه ډوډۍ په دوه افغانۍ اوكوچنۍ په یوه‌افغانۍ.

بنگ یوه لویه د ډوډۍ وا خیستله او له‌د ولسو افغانیو څخه یې دوه افغانۍ وركړې، كومې چې دغلو مشر دده دنیو او ډوډۍ په تاوان كې وركړې وې. دا ډوډۍ یې داسې غرچوهله چې دنگولي‌او كتغ دپاره یې هیڅ ضرورت احساس نه كړ. وروسته یې له دا بنتي څخه پوښتنه وكړه چې :

ـ كندهار ته موټران ځي؟

ـ هوا هروخت‌چالان دي.

ـ ما بمځوك وريا یونه سي؟

وریا به دې ولې وړي ؟ خو غبلی زلمی یې كه پیسې نه لري بخپلو پښولارشه ا خلور مزله لاره نه ده ، دمنې سردی پوونده

هم دغې خواته شیوه کیږي. لههغوی سره ځان ملګری کړه. اوکه دد وی میږي اویا اوښا ن دي ورسره شرل اوکدې دي ورسره بارولي، البتهترهغه ځایه پورې به دې خولی په غوږوکې وي اوخپل کروت اوغوږي بهپر یمان ومي، په هوسایی ا وخوشحالی به دخپل مقصد ځای تهورسیږي او ....

ددکاندار دغوخبرو بنګ ته خورا خوند ورکاوه او لکه ګل په اوبو غوړیږي اولـه دبري خوشحا لی نه یې ددکا ندا ر خبره غوڅه کړه او له ښه زړه څخه یې ورته وویل :

هو! زما مقصد خوهم دغه دښی اړول دي ، په هره توګه او په هر دول چې وي . په موټرکې تګ ما ته هیڅ ګټه نه لري ، بلکه یوڅه نقصان را کوي ،هغه داچې موټرخو سری په یوساعت کې هلته رسوي اوغورځوي یې دا معلومه نه ده چې هلته به زه ژر کار پیدا کړم او که نه ؟ که کا ر را ته ژر پیدا نه شي نو خورا به په عذاب شم ، ځکه چې هلته خو دکلیو په شان په جوما تو نوکې مسا فرو ته دودی نه ورکوي او زه هم دومره پیسې نه لرم چې هغه ورته وخورم . هو! خدا ی دي خیر درکړي دکا ندارکاکا ! چې لار دې را وښود له او یوسم په زړه پو رې مصلحت د ي را کړ. فیصله هم په دې ده چې له پوونده وسره به ځم او خپلې بابولالې به ورسره بولم . پوونده ښه خلك دي، ګوندي دماښام دځملاستو دپاره به بر ستن هم را کوي .

د برستني خبره بې ځکه وکړه چې بنګ خوا رکی د دوو تیرو شپو سړو سوځولی و او په ډیر تکلیف بې په جوما تونو کې شپې سبا کړې وې. بنګ په دې تکي نه پوه و چې نا پیژندونکو مسافرو ته په جوماتونوکې څوك باید تلسکان ورنه کړي، ځکه چې ټل ددې خطروې چې سهار بې هغه تلتك هم له ځانه سره وړي وي.

دغه ډول واقعات ده پخپل کلي کې هم لیدلي وو.

سبا دپوونده وکډې راغلې او په سړك باندې تیرېدلې، سهې و سړي، اوښان اوخره سره ګډ وو. تا روغه سپین سږې ښځې اوسپین ږیري داوښانو په بارو کې سپاره او یا بې ترلي دي. کوچنیان بې هم داوښانو دبا رو په سرکې ترلي دي. یوه خورا لویه ځوږه ده: څوك خاندي، څوك ژاړي، ځینو ښځو اویا نجو نو خپلې موچنې پهسر باندې ایښې دي اولوڅې پښې درومي. څوك اصلاً موچنې نه لري او دپښو چاودي بې له ورایه معلومیږي.

دچا چې بوده ګان درانه وي نو خپل کوچنیان بې په اوږو باندې کښېنولي دي اویا بې په تیکري کې پیچلي، اوشاته بې لېږولي دي. ځینو مېندو خپل کوچنیان تیونه ابولي دي او په عین مزل کی تی ورکوي. داوښانو دغارو دګونګرو شرنګهار دی. څوك وایي: هی هی څوك وايي هشه! ملادي ما نه شه د اسپك بارلانښي وراى! دځینو

خرو او اوبنـانو پـه بارونو چرګان هم نـاست دي او دبوده دهر قـدم اخستلو سره يې وزرونه سره بيرته کيږي. ځای په ځای دسپوسره جنګ شي اوواره هلکان اونجونې يې دسيل دپاره ودريږي، بيا لوی خلـك را شي او هغه سره خلاص کړي او يوبل ته په بريد کې سره وګوري چې يعنې ستا سپی به ملامت و.

بنګ بې لهدې چې لهچا څخه پوښتنه وکړي او ياچا تـه ووايې خپله بنی يې په اوزه کړه او لـه کـډوسره روان شو. په کډوکې هرې خوا تـه ګوري چې کوم کهول لږڅه ښه وي او غوړ لستوني لري او په او ښانو بـاندې يې ډير شيان بـار وي دهغو پـه اوښانو پسې ځي. او کله نا کلـه سوکـه لـه ځان سره وايې ( هـــی).

وروسته لـه دوه درې ساعتـو څخـه يې يـو سړي تـه وويل چې کډې به څه وخت اروي ؟ هغه ورته وويل چې کوم ځای ته درومې ده خپل ټول حال ورته و وايه. هغه ورته په خير ځير وکتل او بيايې ورته وويل چې ته خودې دښه زلمي ښکاره کيږي ګوندې بدوك به نه يې ! کـه څه هم تر کندهاره پورې دځره سړي دپاره څلور پنځه منزلـه لاره ده خو مـوږ پوونده لږڅه په ورو وروځو او خپلې ميږی او اوښان څرو و او پيايو يـې. نو مـوږ بـه هـغه ځای ته ګونـدې پـه ۷ ـ ۸ شپو کې ورسيږو .

کـه دې خوښه وي لـه ما سره شه ! زه به دې تر هغه ځایه پورې ساتم . خو پـه دې شرط چې زه یو اوښیه پـه کـار لـرم چې اوښان مې وروسته ترهغه چې کـلـدې وارووي ځرته بیا یـې . او هم به دکلدې په بارولو کې راسره مرسته کوي . نو کـه تـه دغه‌کارته‌غاړه‌کېږدې البته زه به‌دې هم‌دځپل ورور په شان وگـنم . هغه ځه چې مـوږیې خورو اوبکې ځملـو تاته به یې هم درکوو.

بنگ خـو لـه خدایـه همدا غوښتل او سمدلاسه یې هم سرورتـه وښوراوه اوهم ژبه او بیا یـې سمدستې په جرائت سره یـواوښ سوکـه په یوه لښته پرورانـه وواهه او کرار یې لـه ځانه سره دا ورتـه وویـل چې ( هی! هی! ولې نـه ځې) .

دیوولسو بوولس نیمو بجو وخت به و چې دپوونده وکلي دچینو په غـاړه په اړولو پیـل وکړ. دکډوا‌ړولو وخت تېرلو پووندو و ته خوړا خوږ اوپـه زړه پورې وي . سمدلاسه ښځو دکیـږدیو پـه درولو لاس پـورې کـړ اوځینـو ښځـو داوبوژي پـه سرکیښـودل او داوبوراوړلو دپاره‌چینوته لاړې اوځینو کهی واخیستلې‌اوپه بوتووهلو یې پیل وکړ.

بنگ هم ځپل اوښان چې بارونه یـې ورځنې‌واړول ـ دگتوخواته تیرکړل چې هلته په ځوځا نو کې وځري. دکاله میرمنې یوځه دودۍ ورکړه چې‌داوښانو دځر په وخت کې یې هلته وخوري . بنگ اوښان

خورا ښه وځرول او پرخورا ښوښو ځوځحا نو اوترخو (دښتي بوټي دي) يې برابر کړل . ماښام يې هم ښه نـاوخـته راوستل . کـانـي ددې پـوونـده کاله ځښتن چې خپل اوښان ښه ماړه وليدل ډيرخوشحالـه شو او په بـنگ يې افرين ووايه . کانـي دوې خـو يندې، يوزنـکی ورور ،يـوه مور ، يو کـوچنی زوی او يـوه ماينه لري . زنـکی ورور يې تـل لـه رمـې سره وي. دکډ ې دباريدو دپاره يې کوم مرستيال نـه درلود . نو دبنگ موجوديت ورته گټورثابت شو. اوورباندې خوشحاله شو،او دغه يې دغيښې لاس معاونت وبالـه ، نو دده د خوشحالتيا او رضايت د پـاره يې هـرڅـه چې لـه لاسـه کيـدل هغه يې کـول . (کانـي) خپلې ماينـې اومورته توصيه وکره چې د بنگ احوال اخلئ اوښه يې ساتـئ ، چې خپه درڅخه نه شي . مور يې هم ورته وويل چې دا هلـك خورا ښه زړه لـري، زموږ مال داسې گڼي لـکـه دده خپل چې وي . تل لـه اوښانو سره نوکان وهـي او سهار وختي هم کډه په راستی او جديت باروي .

بلـه ورځ دپوونده و کلـي د( کلات) او (جلد ك ) ترمنځ وارول . ماښام دم ډول وواهه او په داسې طرز يې وواهه چې گواکې سبا کلی ميشت دی او نه کډه کيږي. سهار معلومه شوه چې کلی په ربښتيا نه باريږي. دليل اوعلت يې دادی چې هغه څوکسه سوداگر راغلي دي

کوم چې په ځینو پووندهو باندې یې دوړ یو روپۍ پاتې دي، په تیره بیا کاښی نسبتاً ډیر پوروړي غونډې د ی . بنګ ورځنۍ پوښتنه وکړه، کاښي ورنه وو بل چې په دې خبرو پسې سرمه ګر ځوه ! دا ټل همد ا سې حال وي، په ژمي موږ پووند ه له هر څه څخه خلاصیږو، یعنی شومه مو خلاصه شي، کالي مو په کاروي. نغده پیسه ورکه شي، نو په همدغه وخت کې سوداګر خورا ډیر ې پیسې ( ریګ) نه را شیوه کړي او زیاتره خلک د ډیر مجبوریت د لاسه دو ی نه روپۍ په ور یو باندې د( سلم ) په ډول اخلي. البته ښکا ره خبره ده چې دنرخ په باب کې خو خوله دسوداګر وي اوهرڅه‌چې دو ی وایي موږ یې منو، خوته پوهیږې چې په پسرلي کې چې لا س وښې آزاد ې شي او سکولونه وشي د ژمي تعین شوی نرخ خورا کښته وي او موږ دخپلو وریو یوه برخه په آزاد نرخ خرڅه کړو او نورې یې مجبوراً سوداګرو ته‌دخپل ( سلم) په حساب کې ورکوو . سوداګرتولې وری را څخه غواړ ي ، خو موږ ځکه چې یوه برخه مو لا پخوا خرڅه کړې وي‌تولې نشو ورکولا ی ،نودو ی عرضونه را باندې وکړ ي او کله ناکله دا معا ملې او دعوې ګا نې خورا اوږدې شي او لوی لو ی تاوانونه را ورسیږي. خدای دې وکړي چې دا اوسنی وضعیت پسې اوږد نه شي او سرګردانه مو نه کړي.

وروسته له یو څه ځنډ کولو نه یې بیا وویل : بنګه ورروه ! زه غوارم له تا نه دیوه شي تقاضا وکړم، ځکه چې تا داسې بولم لکه دخپل کاله غړی. که چېرې زه محصلانو ېندې کړم او غوښتل یې چې ما کلات ته بوځي، نوته به دونه ښه را سره کوې چې زما تر را تګه به له کوره نه ښورې، حتی که کله ې کندهار ته هم ورسیږي بیا به هم ته موږ نه پرېږدې او سیخ به له کلهوسره ( ریګک ) ته درومې. دا باید درته ووایم چې زه به ستا دغه نیکي تر مرګه هیره نه کړم او په هره توګه چې ته خوشحالیږې هم هغسې به دې خوشحاله کړم.

دا معمول دی چې په داسې معاملو کې څوکسه سودا ګر په مبهم ډول عرض کوي اودمربوطې ځا نګې یوڅو کسه محصلان ددوی په اختیار کې ورکوي چې هرڅه عارضینو ورته وویل هغه کوي او هر څوک چې یې په لاس ورکړل هغه کش کا زې او پیسې یا جنس ورځنې تحصیلوي.

ټولو سوداګرو خپلې خیمې په یوه غته (لوړه) باندې ودرولې او دهر معروض اوپوروړي په نامه یې رقعې ولیکلې او دمحصلانو په واسطه یې جلبول. یوسودا ګرحواله دار ته وویل چې که موله دې ناروا او ظالمانو څخه خپل حق تحصیل کړنو وپوهیږه چې هر یو محصل ته بهدګورې زین جوړ کړم.

صاحبه! که خدای کول داسې څه بېدرته وکړم چې ته به خپله ورته حیران پاتې شې. صاحب ماته ستاسې دټولو دشرافت، دینداری اوخانزاده ګی په باب کې پوره ویلي دي او راته یې امر کړی دی چې په هره توګه چې وي ستاسې لاس له دې دولو خلکو څخه وکاږم. دوی خو په پروت و په ولاړ نه دي بنداو نه پهدې پروا کوي چې څه خوري او څه کوي. تهوله ورځ لکه لیوان په غرو اورغوکې ګرځي، دانسان او ښو خلکو قدر ورته معلوم نه دی.

یوسپین زیري سوداګر چې پهحاجي آغا مشهور و دحوالدار د دې صمیمت اوخدمت ګذاری له فکر څخه خورا خوشحاله شو اوسوکه یې وویل چې خدای دې دحاکم صاحب سیوری زموږ له سره څخه نه کموي، دیر قدردانه سړی دی دهرچا قدر او عزت دهغه په اندازه ورته معلوم دی، تل دحقدار حق ورتحصیلوي او دیر دلحاظ او پاس والا سړی دی.

دحاجي آغا دخیمې له څنګک سره یو جومات جوړ شو اوهم دتحصیلی اجراأت دده دخیمې لهمخه کیدل.... په یونیمساعت کې ټول قرضداران را غونډ کړی شول او قطار کینول شول.

حاجي آغاتك سپین کالي آغوستي دي اوپهسپینه خولی باندې یې دسپین وریښمین باج بګړی خورا ښویه تړلې ده. داسې ښو به ده چې

ته به وايې په سوان بې سوالن کړي ده. دی چاغ دی ، خو په ونه دومره لوړ نه دی . له دې جهته په ډېر تکليف کښيني ، په تيره بيا په پلنې ( چارزانو ) خو کښيناستلای نه شي. اوتل بې لنډې غونډې پښې نرمخ ورته ابښې وي . له هرې خبرې او ساکښلو سره توخيږي او په دغه وخت کې بې سترګې غټې را وخيژي ، اوزياتره اوښکې ترې جاري شي . دده پيشخدمت اکثره وخت دده شاوخوا ته په ګونډوناست وي اودده اوږې وزرو ورو ورکښې کاږي . سينه تکد انی بې نرخنګه پرته وي . کوم وخت چې حاجي آغا هغه دګروړ بی نوکلو دپاره ور وانخلي او يا بې په ور اخيستاو کې يو څه ځند وکړي نو پيش خدمت هغه په چلاکۍ سره ورپور ته کړي او دده خولې ته بې ونيسي.

اکثره نور دوړيو سوداګر هم شاوخوا په نياليو کښيناستل هر دول خلک بکې دي : چاغ ، تنه نسي ، پنډ ، نرغی والادي. خو ځينې زلميان بې بيا لږ څه دنګردي مګر بوشی دټولو مشترک دی او هغه دادی چې هريوه خورا ښه کالي آغوستي دي او مخونه بې بريښي .

دسودا ګرومو تهران چې شمير بې له څلورو پنځو نه زيات نه دی په عمومي سړک باندې ولاړدي او موټروانان بې پر دوو تلوورته ناستدي او يا په يوخيرن صافي باندې دخپلومو ترانو بانتهونه

او یا بامونه پاکوي. موټران دلمر په وړانګوکې عجبې شغلې کوي.

تولـه دلـه دپـووندهوخان تـه معطلـه ده، په هغه بېې یې سرې لیږلی دی چې ژرراشي اوددغو جنجالي‌معاملو په فیصله‌کولو کې مرسته وکړي. دغو نه وچې خان‌صاحب راغی‌او تیول ورته ولاړ شول. خان دسوداګرو سره پهلاس روغبړ وکړاودحاجي آغا په بلنه د حاجي آغا په‌ځنګ کې کښیناست. په داسې حال کې چې خان صاحب دیوه لیرې غره په څوکه کې سترګې ښخې کړې وې په خپلو بریتو یې ورو ورو ګوتـې وهلې . حاجي آغا لومړی‌په توخې‌پیل وکړاو بیا یې وویل چې:

تاسوحاضرو کسانو تـه پوونده ووایم، کوچیان ووایم، مسلمانان ووایم او یا بل څه‌هرڅه نوم چې تاسې خوښوئ په‌هغه به‌موو بولم. ګورئ! کـوم وخت چې مولـه لوږې پرنس درد وي ، کـوم وخـت چې موکوچنی اولوی لوځې خیټې شي او یا موپـه ګډلو کې د سپږو رمې بهیږي، هغه وخت نور راشـئ او پرور یو بـاندې دپیشکیو روپو مطالبه کوئ، دخپلې ښې معاملې دپاره قسمونه اوقرآنونه خورئ ، ترقسمونو لاندې شئ، طلاقونه اچوئ، خوچې زموږ دسودا ګرو زړه‌درباندې وسوزي اوپه وریو پیسې درکړو ، کار مو دروچلـو و او سـترګې مو

نهامې شي نو بیاهغه تولې نیکې اوهغه تولې مرستې چې موږدرسره کړي وي لـه یاد نه ووځي ، په نس چې ماره شئ او تر ژمي ځان وباسئ نو خپل قولونه مو هېر شي او خپلې ورې په جگه‌بیه په بل چا باندې خرڅې کړئ ، دخپلو دیندارانو حق مـولـه زړه څخه ووځي. موږ دې ته ارکړئ چې په غرو رغو کې درپسې منډې ووهو. تـاسو باید په دې پوه‌شئ چې کـه دغه سوداگره طبقه نه وای ستاسو به څه حال و؟ له کومه به مو یو قـران موندلی،چابه تاسوته دومره په زرگونو روپۍ پیشکې درکولای . ښکـاره ده چې موږ ته خدای (ج) وس راکړی دی چې ستاسودگټې،هوسایـنې اوار امی‌دپاره‌مرسته وکړو . نوتاسو باید نا شکري ونه کړئ او تل زموږ دسوداگرو زړه پـه لاس کې ونیسئ،چې بیادرسره معامله وکړو . نه‌مودي اوریدلي‌چې وایي:
( ښه معاملـه بیا معاملـه بده معاملـه بس معامله ) .

حاجي آغا بیاتوخي پسې واخیست اووروسته له‌هغه چې په تکت دانې کې خپلې غاړې تازه کړې بیایې وویـل چې اوس هم واك ستاسې د ی : که خپل آب‌درباندې گران وي‌او دځان سپکه نه غواړئ خپل حق ترځان را تیر کړئ چې هم مو ددې جهان گټه وي او هم مودهغه جهان . نه مو دي اوریدلي چې دمومن ورور حق و رکول په هغه جهان‌خورا لوی عوضونه لري اوکه‌مو بدراته په زړه کې وي نو دا

باید ووایم چې موږ هم ستاسې نه کمزوري نه یو، شکر دی خدای دې دحکومت سیوری زموږ له سره نه کموي. (حوالدار ته اشاره) دسو تبي په زور بې هم در څخه اخستلای شو. البته هغه وخت به نو بیا ستاسو ګیله نه وي. پخپله ناسو ته معلومه ده چې زه دپیغمبر (ص) اولادیم - زمارو پې هیڅوك خوړلی نه شي.

یوبل سوداګر محان ونوراوه او دحاجي آغا خبره یې غبرګه کړه او په داسې حال کې چې دتورو نسوارو په ډبلې بانـدې یې دسپینو زرونقش ښکاره کیده - لوبې کولې او مخ یې داسې پرسیدلی و چې ته به وا یې مچې خوړلی دی - وویل چې پوونده په موږ ډیر ګران دي . موږ ددوی ډیر مراعات کوو، محکمه چې هم دا پوونده زموږ باغ دی - کـه باغ و دان و موږ و دان یو او که باغ خدا ی دې نکړي خراب و- موږ و رسره خراب یو. مګر دانو دامعنی نه لري چې پوونده دې زموږ سپینې زرو پې وخوري. موږ هم داپیسې په آسانه او مفتې نه دي ګټلې، بلکه موږ ډیر ربرونه اوخوارۍ ګاللي دي تـندي مو خولې کړي دي. دغـه ستاسې وړی که تاسې خبرشئ، چې موږ یې په څه چه ونو خرڅوو، نو را ته حیران به شئ : لوبې لوبې اعانې ورکوو، دمکتبو، شفاخانو اوبناوالې سره مرستې کوو. کـه زموږ دسوداګـرو خلمت نه وي ، نو ټول خلـك بـه لوږ لغړو ګرځیږي

مري به مو بې کفنه ښخ وي . کـه تاسـو لـه موږ سوداګـرو سـره ښه معامله ونـه کړئ اوخپل حق ترڅان را ورانـدې نه‌کړئ ، نـو تاسو پخپلـه فکر وکړئ چې موږ به خپل ملـك ته دا دومره ښګيني او مرستې په څه ډول رسوو.

ملـك يا خان صاحب چې تر اوسه پورې خورا پټه خوله ناست‌و او په يوه لاس بې (٣٣) دانې ژېړې تسبېې اړولې چې خسر بې له مکې شريفې نه ورته راوړې وې او بل لاس بې په‌بريتو اوږ بره‌باندې واهه او دسوداګروخبرو، نصيحتو اوتهديدونوته‌يې غوږ نيولى و. په‌داسې حال کې چې پـه دوارو زنګنونو بې دواړه لاسونه را ګـرځولي ور او چې کلـه نا کله به يې دشاو خوا ته زورر او لنګروکړنو پښې به يې لـه ځمکې څخه‌لږ څه جګې‌شوې ، وويل چې:

پووندہ خو دومره ( خوړلې شومه) هم نه دي . چې هرڅوك به پرې تيرى کوي. دزورر او سوټې خبرې بايد يوې خوا ته کښېږدو. دا دپووندہ وکلى خـو زمااساميان‌دي. زه به په هـره توګـه او کـره چې وي لـه دوى څخه‌مدافعه وکرم. که مې ملاوترله او قـصد مې وکړ ترکابلـه پورې به يې درسره ووهم. داسې نرموږ هم‌ګومان مه اړوئ.

يويل سيين ږيري پووندہ دملـك خبره پسې تائيد کړه او وې ويل : موږ به تولـه معنى په خان صاحب پسې ولاړ يو. پووندہ به البته خواروي

مگر بې غيرته خو والله كه‌وي - هم‌دسوتيې زور لروا وهم د ( كوتي )
موز په هيڅ وجه حاضر نه يو چې ناسو ته تردې زياتې وري دركړو.
ستاسو دپيسو زياتره برخه مو دوريو په مقابل كښې در ادا كړه ، اوس
ممكنه‌نه‌دهچې دپاتې‌جزبې پيسو په‌عوض كې‌هم‌وري در كړو څكه چې
وري نه‌لرو او پخوامولاخرڅې كړې‌دي. هرې خواته‌مو چې بيا ياست
حاضريو ، كه‌موبنديانوئ هم څه پكې نه‌وا يو ، خووري نه‌شو دركولاي
نورو هغو پوونده وچې هلته حاضر وو هم ددغه سپين زيري
خبره په يوه خوله تائيد كړه. او دا چې وري نه‌شي وركولاى په
تينگه اوبه يوه آواز يې وويل: دخان صاحب خبره ددې دلې له
خوا هم يې غبركه شوه او خپله كامله مرسته يې له‌ده سره څرگنده
كړه.
په دې حال كې حاجي آغا دولا ريدو هڅه او اراده وكړه چې دده پيش
خدمت له‌اوزو څخه ونيو اوولاړ يې كړ ، نورو خلكو غوښتل چې
له ده سره ولاړ شي خوده دخپل لاس په اشاره‌تول په‌ځاى كښينول
خو حوالدار دتيارسئ په حال كې ودريد او دحاجي آغا خوا ته‌يې په
څير څير كتل او دا يې وضعيت‌بې اختيار كړچې‌نه په وايې دحاجي
آغا په اشاره به اوس دغه‌تول حاضرين په رسي وتړي او په وهلو
به يې پيل وكړي.

حاجي آغا په داسې حال کې چې ملك صاحب ته يې د راولاړيدو اشاره کوله - وويل : هرڅوك لوى وکوچنى، ځوان و سپين ږيرى اومشر او کشر لري - دا داسې خبره نه ده چې په ځاورو ، پنځوخولو فيصله شي. تاسو که نوکى ساره شئ او پريږدئ چې دمشرانو ترمنځ خبرې اترې وشي ګوندې يوې فيصلې ته سره ورسيږو. که نه و، نو زور خو به هغسې هم سره معلوم کړو ( حوالدار ته اشاره )

حاجي آغااوملك دواړه دخيمې خوا ته روان شول. دملك لاس دحاجي آغا په لاس کې د ى ، مخ يې وروړا وه اوخلکو ته يې وويل چې موږ به سمد ستي بير ته راشو.

دننه په خيمه کې حاجي آغا ملك ته وويل چې ستاخو پلار زما اشنا وا تـا ولې داسې کلکې خبرې وکړ ې ؟ موږ ا وتاسې خوسره يوشى يو، بايد زما ګټه دځان وبولې لکه موږ چې تل ستا ګټه دځان بعولو. خپله لو نګى دې پوره واخله، خو دا نور پوونده ر ا تـه مه بدوړ ده کوه . او په دې مومه سرګردانه کوه چې حکومت ته خبره ورسوو او هغه ته يې په لاس ورکړو . ځکه چې هلته بيا موږ ته څه نه را جوړيږي اوغوا به بل چا ته ورلنګـه کړو. يعنى خبره داده ملك صاحب! چې زموږ او ستا موله لاسه بههر شي ووځي او هدوکى به دبل خولې تـه ورشي . پريږده ! زورروره ! خپل ( لاس سره)

واخله! او له دغو خلکو څخه مولاس وکاږه.!

ملك صاحب په خورا پسته اونرمه خو په فاتحانه ژبه ورته وویل چې :

حاجي آغا ! که مې داسې پېش رونه وای، وهلې بیاپوونده او دومره اعتبار په مانه کاوه. د ملکی چلونه خوپیل دي، هر کار خپل چل غواړي، خوملکي (ول)هم غواړي. ته خو پوهېږې چې زه په خو لحاظو ستا خاطر کوم او هیڅ وخت به ستاله امر څخه غاړه ونه غړوم او په دې هم پوه يې چې ستا پونوك به ددغو ټولو کوچیانو سره برابر نه کړم. خبره داده چې باید زموږ برخه پکې وکړ ئ- بیا چې هرڅه کوئ هغه وکړئ. قاعده خو داسې ده چې تاسو باید لومړی له ما سره کتلي وای او له ما سره موخبره جوړه کړې وای وروسته له هغه نه مو چې هرڅه کولای، کولای مو شوای. د فارسی ژبې دا متل مونه دی اوریدلی چې وا يي:( باملك بساز -ده رابتاز ) یعنې له ملك سره يې جوړه کړئ بیا نو که ټول کلي چور کړئ پروانه لري. خیر دی اوس هم نه ده تیره.

حاجي آغا سمدلاسه دوه دري نور سوداګر دننه خیمې ته ور وغوښتل او هلته يې ددوی په مصلحت دملك صاحب سره خبرې شروع کړې اووروسته له ډیرو خبرو اودلایلو نه داسې فیصله وشوه چې : هر څه وړي چې دپونده وله دغه کلي څخه بودې شي شپږمه برخه

به بېي ملك ته د( لاس سره ) په‌نامه ورکوي چې تبولوسوداگرو په‌دغه فيصله باندې امنا او دعا وکړه.

په دغه وخت کې دوه دربو پوونده و چې لوخ لېړ وو په څنګو سره ووهل اوبوه دغه بل ته وويل چې کاشکې دا خبره موږ پخپله له سوداګرو سره فيصله کړې وای، ګومان کوم چې سوداګربه خان صاحب ته پټه برخه ورکړي او اوس بېفيصله زموږ په نقص وشي.

هغه بل ورته وويل چې کاشکې موږ دومره خوله درلودای چې دا دول فيصلې موکولای شو ای، له ملك څخه به مو څه غونبتل . نه دې دې اوريدلي چې وايي :( ترملکه شي، نو ورکه شي.)

ملك په داسې حال کې چې تسبې يې ژر ژر په ګوتو کې اړولې له خيمې نه راووت او حاضرينو ته يې وويل: ډېر زور مې له دغو مسلمانانو سره وواهه، خودوی خواران‌هم حق په جانب دي .څه وکړي دوی هم تل غواړي چې دخپل عيال دپاره يوه خوله نمری پيدا کړي. د دنيا کارونه يو په بل پورې اړه لري . که دوی پرموږاو تاسې يوڅه ونه ګټې ، نو بېي پر چا وګټې. اخر دوی هم بايد څه و خوري .

ياره خلکو ! زه غواړم چې له دغو سوداګرو سره يوه فيصله وکړم، تا سې به‌هم پکې څه نه واياست.

بيا ملك تسبې په جيب کې واچولې او دهغو په ځای يې

دنسواراواوزد دبلی را وکینبس چې رنگ یې سپین اوخو اوزدې اوزدې لیکې بکې ایستلې شوې وې او دکین لاس یوه گوته یې ورننه ایستله اوورو - ورو یې نسوار ورځنې په گوته وگر ول اوخپلوخبرو ته یې دا دول دوام ورکړ :

موږ هم باید حق ته غاره کیږدو، دا ځرگنده ده چې هر ځوك اخرت اوحساب او کتاب لري . سربیره په دې خو خدای شنه، پاچا شته ! که دغو خلکو ته خیل حق تر ځان ورتیر نه کړو - مبکاره خبره ده چې دپاچاېی دعدالت په دام به گیرشو او هغه وخت به هرومرو ددغو سوداگرو حق و رکوو. نوښه داده : غوته چې په لاس خلاصیږي په غاښو یې خلا صه نه کړو.

یوه سپین ږیري چې هغه هم پورور ی و په داسې حال کې چې نسواریې یوې خواته توکول ورته وویل : •

ملك صاحب ! چې ما دتول کاله سره په کرابې کې وایشوئ ورئ به راباندې بودې او جورې نکرای شئ. هو هغه ځه‌پیسې چې یې را باندې پاتې کیږي هغه به په هره توگه چې وې ور پیدا کرم اوددو ی غاړه به پرې وباسم. ما به ورئ هم ورکړې وا ی خو در ته قسم خورم چې دلاسه مې وتلې د ي او اوس یوه کلوښته ورئ هم په کور کې نه لرم . ځان خو ورئ کیږي نه .

لـه حاضرینو نه یو بل سړي هم دغه د ول وینا وکړه ، خو ملك

ورته وویـل چې یوه سترگـه به موږ اړي اوبلـه بـه موخاندي د خلکو وړی به ورکوئ، بلـه چاره مونشته. بیا یې دیو بل سري په غوږ کې ورو وویل چې:

ته جگك شه اووایه چې ددغو مسلمانانو حق په هسکه غاړه ورکوم اوله هر دځایه چې وي ددو ی هغه وړ ی به ورکـوم چې پر مایې حـق کیـږ ي . البتـه ستـا ( لاس سره) بـه نـه هیـروو او لـه سوداگرو به درته یوشی واخلـم.

حاجي آغا ملـك تمخ ورواړاوه اوپه لوړ آواز یـې ورته وویل چې:

کـه څوك ستـا لـه امره او حق ورکولـو څخه غاړه غړوي نو موږ کولا ی شو چې دغوږو تـاو ورکړو. ( حوالدار ته اشاره ) امر ورکره چې یوځه شنې لښتې راوړي. دا خلـك د زور مسلمانان ښکار ه کیږ ي چې یوه پلاځو دمې شي البته هغه وخت به نو په لاره سم روان شي.

حوالدارلـه خپلې مـلاڅخه غمچینه را خلاصه کـره او هـم یې نورو محصلا نوته امر ورکړ چې غمچینې مـو دملانه رایلـه کړئ . بیایې حاجي آغا ته په یوه پوکـه لهجه وویل چې :

لښتو ته حاجت نشته ، ستاندعا له برکته موږ تـل ملاتړلي گرځو که ستاسو امروي اوس دستي به یې درته پـه لار کـړو . دغمچینې زور بـه یې داسې قـائل کړي لـکـه بلـبل .

سمدلاسه یې هغـه څـوکسان چې دوړبو په نه ورکولو کې بې

اصرار کاو، ، خملول او ښه د بوسو خوسې یې ورځنې جوړ کړل .
په نتیجه کې ځینې یې قاتل شول اودوړیو په ور کولو یې رضایت ښکاره کړ او ځینو ډیرو لادوړیو له ورکولو نه غاړه غړوله .

ملك حاجي آغا ته وویل چې: که یې مره کړې هم ګومان نه کوم چې څه پرې جوړ کړې ! ښه داده چې یا یې پر یږدې او یا کوم ډول تیره اومراعات ورسره وکړې او یا داچې حکومت ته یې کش او هغه ته یې په لاس ورکړې چې بندیان یې کړي .

یوبل سوداګر (مخ پرسیدلي) حاجي آغا ته وویل چې: کوچیان له بندڅخه خورا ډار یږي، مرګ قبلوي خویوه ورځ بند نشي منلی که یې بندیان کړي ژربه څه ترینه بود شي. که نه وي ، په بل ډول باندې نه کیږي.

حاجي آغا ورته سوکه وویل چې که بندیان شول نولاس ورځنې پریمنځه، ځکه‌چې زموږ له لاس‌او اختیار نه خبره وځي، نوربه پرې ماره شي‌اوموږ ته به‌هیڅ په لاس را نه شي. ښه داده چې په هره توګه چې وي تیره ورسره وکړو .

ټول حاضرین سره کوټې کوټې کیدل، چا ویل له سره یې نه ورکوو، چاویل‌چاره مو نشته‌چې یې‌ورنکړو و هم به‌سرګردانه‌او لالهنده یو او هم به خورا ستړ تا وانونه راواوړي.

ملـك دسوداګرو تولـي ته وویل چې که تاسوخپل پخوانـی قول اووعده زما پهحق کې سانـئ نوزه به یوه لاره جوړه کړم، داسې لاره چې نهسیخ وسوځي اونه کباب. ستاسې پیسې بهسره لمنې ګټې درحصولشي.

(مخ پرسیدلي )سودا ګر په ګیله امیزه لهجه وویل: موږخوهیڅکله له خپلې وعدې او قول څخه نه ګرځو. څه چې مو درسره ویلـي دي هغه صحیح دي نه دغه لاره موږ ته وښیه چې هغه به څرنګه لاره وي؟

وروسته ترهغه ملـك خپلـه نظربه دوی ته داسې وویلـه :

څوك چې سږکال وږی نه شي درکـولای هغه دې په کال وږی درکـړي. البته نرخ به یـې کـم وي چې دپیسو مفاد ورځنې ووځـي . سربیره په د غه ډول پوروړي مقروضه خلـك به نورې پیسې هم لـه تاسې څخه په وږیواخلـي او په کال به خپلې وږی تولـې بې له کوم زیان څخه تاسو ته تحویلـوي . پـه دې باره کې به خور اتینګ خطونه ورڅنې اخستل کیږي. که چیرې دو ی بیـا دخپلو وږیو کومه برخه آزاده خرڅه کړي، نوبیو په دوه به دهغو تاوان درکوي . زما پهعقیده خوله دې نـه ښه فیصلـه نشته هوا یوشی بل هم کیږي هغـه دادی چـې داتول پوروړي بـه ستاسـو دغه احسان او مرسته هیڅکلـه نه هیروي او تل به ستاسې دبقا اوسعادت دپاره دعا ګا نـې کوي .

حاجي آ غا اونورسودا ګر پهدې خبره ډیرسره وغوړیدل اوددو ی

له بنوځخه ښکاره کېدله چې دملك ځخه په پټه خوله تشکر کوي او دده په دې فکر باندې آفرين وايي. يوه سوداګر چې توربخن رنګ يې درلود اوخوراښه درېشي يې کړې وه ملك مخاطب کړ او په پريکړو الفاظو يې ورته وويل: ته خو يوازې دکوچيانو ملك نه يې ، زموږ هم دسترګو توريې ـ ستاخبره خوهيڅوك په ځمکه نه اچوي، منو يې

يوسوداګرورزغ کړ : په دې شرط چې پخپله ملك زموږ ضامن شي ، دهر څه په سند باندې دې د تضمين مهر ولګوي.

دپووندهوله دلې نه يو زغ را پورته شو: بيا مو دسوداګرو په ژامو کې ورکوئ. تېرکال کښته پورته زغلو يو کلوښته ورې په څه خوار يو په لاس راوړو ، هيله مووي چې پـه هغو دکاله تن پټ کړو ، دکمکيانو خيټې درباندې پټې او دکاله يو څو شپوشومه يې کړو . زموږ دا څو ميزې خو کلاريز، پټې ، دکان او جايداد دی . هغه داليوان په چموکې را ځخه يوسي ، نو موږ څه وکړو ؟بس ـ له سره يې پيسې نه اخلو دپاتې پيسو به يې پرکال ورې ورکړو او بس.

ملك په يوه زيږه اولوړه لهجه ورته وويل چې : دمسلمانانو زړونه مه سره اخله ـ دا خبرې دښه سړي نه دي . دغه سوداګر چې له تا سره دومره سوهان وکړي چې ترکاله پورې خپلې پيسي اوورې درپرېږدي ، نو بيا موږ وتاسې دګيلې څه حق لرو .

وروښو ! لحاظ وپاس خوښه شی دی! نـه شرمیږي چې دغه سپین کالي دآب خلـك تاسې ته په دې رغو کې ناست دي ؟ تهخووګوره څومره زړه سواندي دي؟ که بل څوك وا ی لـه وخته به یې پـه بندي خا نو کې وراسته کړي واست ، خـو داددوی نرم زړه ، لویه حوصلـه او زړه سوی دی چې تاسولهسرګردا نیو اوو هلـوتکولو نه خلاص یـاست نور څه مه وایاست.

دلږ څه ځنډ نه وروسته بیا ملـك یوه ته وویل چې: منده ـ ورشه ! لـه هغه پورې کلـي نه یو لیك اولوست وا لا سړی اویا مـلاراوله چې دا خطونـه اوسند ونـه ولـیکي. کلـی نورنه شيمیشته کیدلای او باید سبا وختي کـډې بار شي. دا میلمانه خواران بههم په زرګونو کـارونـه لري او پخپلـه مخه به در ومي.

حاجـي آغا په داسې حال کـې چې نور نسواریې په اورغوي کې واچول اویو نسواري ډولـه دسمـال یې دنیـالـی لــه څنډې څخه را وکیښ اوڅـان یې په یو اړخ او بل اړخ کړوویل: په موږ کـې ښه دلیك او لوست خاوندان شته چې خورا ښه حجتونه کاږي . په تیره بیا ځینې داسې کسان په موږ کـې موجود دي چې پخوابـې لوی لوی ماموریتونه درلودل. خطـونه به ولیکـو،د هـر یوه ګوته به پرې ولـګوو ددوی ترګوتولاندې څرنګهچې وویل شول ستا (ملكصاحب) لا سلیك

اودست خط ضروري دی ، ځکه چې موږ خوله دې دومره اولس سره بیا په غاره کې نه شولویدلای.

ملك ومسل اوورو یې حاجي آغا ته ترغوږ ورتره کړه چې : (دفیصلې برخه به مې دضمانت له برخې څخه جداوي.)

یعنی د ضمانت لونګی به یې جدا او دا چې فیصله یې ددوی په ګټه وکړه دهغه ( دلاس سره) به بیل وي. هغه ورته سر کښته اوپورته کړ او دده مطالبه یې تائید کړه. وروسته له هغه ملك په جدي او تاوکړي زغ حاضر ښونه وویل چې : لاس پورته کړئ او دعاوکړئ چې خدای دې موږ وتاسې ته توفیق راکړي چې دغه فیصلې عملي اوسرته ورسوو او دحق دار انو حق ور اداکړو. که څوك په دې کې ماتې ګوډې کوي او خاشې پکې ماتوي نو هغه دې وپوهیږي چې والله هډوکي ځو به یې په زندانو کې وراسته شي . بیا نو هغه وخت له ما اوله دغو سپین کالیو ورونو څخه څوك ګیله نه شي کولای اوګناه او مظلمه به یې پخپله غاره وي . .....

له پوزوریو څخه هیڅا څه ونه ویل . بیا ملك ( حاجي آغا) ته مخ راواړاوه او ورته یې وویل چې پته خوله اوچوپ والی په رضامندی او خوښه باندې د لالت کوي او اقرار بلل کیږي. امر ورکړئ چې حجتونه ولیکې اوهم خلکو ته دنوي کال دپاره دوریو

پیسې باید ورکړای شي. کـه پیسې دلته درسره نه وي خیبردی پروانه لري، خو یوه یوه رقعه هرچا ته ورکړئ. کوم وخت چې کډې در شي او لـه ښاره څخه تیرېږي دهغو رقعو په موجب بـه هرچا تـه هـر څوك خپلې پیسې پیشکې ورکړي.

دحجتو دلیکلو او درقعو دورکولو په پای کې ملـك حاضرو پووندهو ته په یوه آمرانه لهجه اوداحسان اچولو لـه مخې وویل چې: زه ستاسو ضامن شوم او لـه دې جنجال څخه مې خلاص کړاست! یو شی باید تېنګټ په غوږ کې ونیسئ او هغه دادی چې پرقول به نه خیژئ دروغ دایمان زیان دی، په دې دنیا او په هغه دنیا به ضرر ونه وینئ خپلې وری به آن پـه هغه ګړی چې سکول مو وکـړ دغو سوداګرو ته ورکوئ ، خودا هم باید اوس لاووایم چې ددغو وریو ( بچګی ) یعنی کمبشن زما دی ، چې سربیره د(ملکی) پـه پیسو باندې هغه بـه هم راکوئ.

ملـك او څینو سپین ږیرو خلـکو دغرمې ډوډۍ لـه سوداګرو سره وخوړلـه چې پسونـه یې حـلال کـړي وو او پـه خوړا بـرم دمیلمې په توګـه ډوډۍ ورته پخیدلـه او بیا سره رخصت شول.



بنګټ سهار وختي خپل بوده ګان ورشوته وشړل او پخپله دسوداګرو

او پوروړو دي جرګې ته راغی او په داسي حال کې چې ملا یې په توروا ښکې تړلې وه ـ پرخپل لرګي یې زنه تکیه کړې او ددې جریاناتو سیل یې کاوه. ده هیڅکله داسې سري نه وو لیدلي. ددوی پاکو او سپینو کالو اوسرو قالینو او نیالیو دی حیران کړی و. ددوی اسمانی پاکو او ښو مخونو هم دی په حیرت کې اچولی و. ده فکر کاوه چې ددوی پر مغزیو باندې خیری ولې نشته اوکالي یې ولې پینه‌لري.

په تیره بیا بنګ ددو ی دودی خورا حیران کړ او هیڅ تصوریې نه شوکولای چې انسان دي دا ډول غوره او مفصله دو دی خوري. ددي جرګې دخلکو خبرو او حرکاتو ته یې سده تللی و. په دغه وخت کې کاښې ورباندې زغ کړ چې اوښان دي څه کړل؟!

مازیګر لمر پـه غره کې جګ شو او پخپلو پلوشو یې په اسمان باند ې کوم غټ غټ سپین اوره چې وسره وارول تا به ویل د انګار خورا لوې لوې کوټې په آسمان را څړیږي او سرې به بیریده، چې فکر به یې نه وه چې اوس دا اور را باندې ونه لویږي.

لږ څه ترغوني چې شوه بنګ بوده ګان دخپلي کیږدی مخې ته راوستل او هغه یې دکیږدی شاوخوا تمچوك کـړل.

دکـالـه ټـول اعضا هم خـوشحالـه دي او هـم خـوابـدي: بـه دي چـې لـه دستي او سمدلاسه جنجال څـخـه

خلاص شول خوشحاله دي اوپه دې چې په راتلونکي کال به بیا سوداگرونه ورځی په خورا ټیټ نرخ ورکوي-خوابدي دي. په تیره بیا دکانښي مور چې خوراوسو اسي او سوداپې ده دماښام له لمانځه وروسته دکیز دی نه دباندې ناسته ده او په زوره زوره ښیرا کوي ،کله څه وایي او کله څه . کله وایي چې اې خدایه ! ته ددې ظالمانو غاښونه وکاږې! خدایه ! ته بې زما دلالي له غوښو مخ پرته کړې! خدایه ! نه خو زما سرې وبخښي او اجرونه او عوضونه ورته ورکړې هغه خوارکی خو دهمدې سوداگرو په فقره کې سکاروې و واهه اوله بندې خانې څخه بې ناروغه راوست چې بیا پېې مړشو.خدایه! ته دده برکتونه زما دلالي په برخه کړې اودغې په زاره ترکې مرگ ورنه کړې.

کانښي چې په یوه کوچنۍ بوجۍ کې اوربشې څایولې وروغ یې کړل:

ادې !راځه بس دی لیونۍ لیونۍ مه غږیږه ! ستا بې ددې دنیا په کارو کې څه؟ خپله دعا وکره ،راولاړه شه !

دکیز دی په خوله کې نغرۍ دی اوپههغه کې خورا ډېر اوربل شوی دی او ښه ډېر انگار پکې پروت دی . دنغري په یوه څنده کې تبخی باندې دی او دکانښي ماینه ورباندې باستې پخوي . دکانښي مورچې

لـه لمانځه څخه راولاړه شوه اونغري تـه راغلـه ، کښېناستلـه نـوبيې نزور ته وويل چې نجلۍ! نه داپاستي ولـې پخوې ؟ په دې خوځوك نه مړېږي، هر څو نه چې ورکړې بياهم وږي وي لو بې لو بې پنډې پتيرې به دې پر اچولـې چې دهر چا ښه پرې شوې وای.

نزور چې کوم ځواب ورنه کړ نو دالا په قهر شوه او په وچ اوجدې ژغ يې ورته وويل چې کـه دې اوړه دخپل دپلار لـه کوره وای نو هلـه خو به دې دادومره پاستې نه پخولای او داسې (کاکونه) اويـا (پتيرې) به دې پخولای چې دچا غاښ هم نه په جګيدلای.

زما دزوی دې وهلـو پوندو ته نه ګورې ؟ دده وچو او چاودلو شوندانو ته خـونظر وکړه. دسره کافر به لاژړه پر وسوځي.

بنګ ورته وويل چې : ادې نن غم مه جوړوه ! نـن دخوشحالـۍ ځای دی . کـه يې کـانې نن بند يخانـې ته را څخه بيولای وای خو به هم ناسته وې، اوس چې دی بيرته په روغ صورت درته راغلـی اواوس دې لـه ځنګـه په نغري بـاندې درسره ناست دی ، هم تـه خوشحالـه نـه يې.

يـه زويـه ! خوشحاله يم ، خدای دې داګرې او داساعت په غم نه رابدلوي (ګوته يې لنده کړه او ځمکې تـه يې وروړه او بيا يې ژبې او غوږو ته ورتيره کړه. يعنی خاوره يې او ځکلـه چې په دې

حال کبر اونا شکري و نه شي) نو په داسې حال کې چې خپل تیکری یې په سر یاندي را وخکاوه او لاس یې اورته دتودوالي دپاره وروغزاوه وویل : څنگه وکړم بنگه زویه ! همدا کاڼی د ی چې کیږدی مې پرې ولاړه ده، هغه بل زوی خو مې کمکی د ی ، دترپ اوخرپ او د جهاندا ری نه د ی لږ څه باولـه شان هم دی ، گوندې چې لوی شي ښه به شي دمور دزړه.....

په دې وخت کې کاڼي دخپلې مور خبره غوڅه کړه او په یوه آرامه او طبیعي لهجه یې بنگ ته وویل چې:

ته څه فیصله کوې آیا ته موږ سره ربگ ته ځې اوکه په ښارکې پاتې کیږې. که لـه موږ سره ځې هـم مې پوه کـړه اوکـه پـه بلـه دروې هم را ته ووایـه چې که مې لـه وسه وشي یوبل هلـك پیداکـړم.

لومړی ترهغه چې بنگ ځواب ورکړي د کاڼي مورخپل زوی ته وویـل : ښار لا چیرې د ی درې څلورزورور مزلونه ور ته پاتې دي ، ترهغه ځا ی پورې چې رسیږو گوندې بنگ هم خپل زړه وپوښتي او ځانته یوه لاره غوره کړي، د ی هم مور لري داسې وچې پوښتنې مه ځنې کوه خپلې خوښې او مخې ته یې پرېږده .

ادي ! تهخوتل دخبرې پهمینځ کې را لوېږې، تهخوواېې چې زه په دنیا یې کاروکې کارنه لرم، پرېږده چې زه دبنگ له زړه څخه لومړی خبرشم.

مور یې ژړغونکې شوه، خوبنګ دوی ته نور د مباحثې اودطبیعت دخروالي موقع ورنکړه او کاښې ته یې وویل چې:

ما خولا په کورکې په زړه کې دا خبره سره جوړه کړې وه چې په بنار کې به پاتیږم او هلته به دځان دپاره خواري مزدوري پیدا کوم چې په پسرلي کې دمور او خویندو دپاره یوڅه پوښ وکړم.

- رښتیا دپسرلي نوم دې واخیست، په پسرلي بیا زموږ سره ولاړشه ! دونه دروند کار به نه در باندې کړو صرف (اوله) به را سره شې.

بنګ په پزه کې ورته وویل: پسرلی خو لا خورا لیرې دی، ګوره تر هغه وخته پورې ورځو او که یه ! دپسرلي خبرې به په پسرلي کوو، یعني هغه وخت او هغه ګړۍ به سره غږیږو.

بنګ په داسې حال کې چې په تبخې پسې یې ترخې پسې کولې او دکاښې دمایني دپاستو پخولو سیل یې کاوه دکاښې مورته په خورا خوند اوحیرت سرمدورځې واقعات بیانول اودهرسوداګر دقوارې اوخبرو په باب یې هغې ته تفصیلات ورکول.

دکاښې خویندې دواره لګیا دې یوه په کاسه کې پاستې وروې اوبله یې په هرکاره کې له ژې څخه غوړې را کاږي. کله نا کله بنګ ته داور په رڼا کې وګورې او بیا ژر سترګې کښته واچوي او دا عمل څو ځلې تکرار کړي.

کوم وخت چې دپووندو کډې ښار ته را نژدې شوې نو بنګ خپله بنې سره سمه کړه اوعزم یې وکړچې سبا هغه وخت چې ددوی کډې ورسره بارکړي نو پخپله به رخصت‌واخلي‌اوښارته به ورو ګرځي. مابنام بیا پر نغري سره ناست دي. دکابني تنندی تربو غوندې ښکاره کیږي. مور یې ورته وویل چې: هلکه! نن بیا ولې برسلك غوندې ښکاره کیږې؟ بیا دې په کتوري کې چادر ته تو کړي دي؟ بنګ هم نن شپه را سره دی باید خوشحاله یې ترځان تیرکړې! خدای‌دې برکتونه ورکړي دا اووه اته شپې چې دی له موږ سره شوی دی اوښان په نس ماړه شوي دي او حتی دهراوښ ښه تر پخوا ښه شوې ده. سهار وختي به یې په پلووهم او بیا به یې په خدای سپارم.

ادې! که مې دزړه پوښتې - زما طبیعت هم په دغه خراب دی چې سبا به بنګ له موږ څخه جلا کیږي. موږ بل څوك هم نه دی پیدا کړی بد یې آموخته کړو، پخوا موهرکار پخپله کاوه، اوس دکار ډېره برخه بنګ په اوږو اخیستې ده. بیا یې مایني ته وویل چې: میرمني! ته خو نن ښه کاسه تیاره کړه - بنګ به بیاله موږ څخه خوله وهي چې پووندو ښه خلك نه دي. هر ډول چې یو، همدغه‌یو، پخوا هم دغسې وو، اوس‌هم دغه ډول یو (ښې نه یو تکولې) خدای

دې وکړي چې په پسرلي هم له موږ سره يوځای شي ، هغه وخت به زموږ ژوند وګوري او پوه به شي سره له دې چې يو ندو خو مره سرګردانه دي بيا هم هرکال خوار امې او خوږې شپې هم لري .



بنګک کله ښار ته نه ورتللی . تل چې له کوره په مسافری او کار پسې تللی دی په يوه بله منطقه کې به په يوه کلي کې ديوه بلهای سړي مزدور شو . چې ژمی به يې تير کړ ، نو سمدلاسه به خپل کور ته روان شو . داخلې دومره لوی ښار ګوري چې خلک پکې ترله اوري ، بګی دورې دورې ترله جا روزي ، کوڅه له خلکو ډکه وي . خو هيڅوک په هيڅا پورې اره نلري . بنګک دې خبرې تر هرڅه ډير حيران کړی وچې دغه خلک ولې روغبړ نه سره کوي او ولې يو بل ته سلام نه سره اچوي؟ او يا دا چې څرنګه په کوم شي نه سره خوري؟ له يوچا څخه يې پوښتنه وکړه چې دا محصل غوندې سړی ولې دبازار په منځ کې ولاړ دی ؟ او لکه ليونی کله لاس دورې وغزوي او کله يې دورې؟ کور نه لري؟ دا دلاس غزولو پيښې ولی کوي؟

هغه ورته وويل چې : دې ته دترافيکو پوليس وايي دا بګی او موټران ترله تيروي ، نه يې پريږدي چې هغه يو پر بل کې توی شي .

دې خبرې ته دبنګ سد لـه سره ووت چې دغه محصل (دترافیکو پولیس) ته ولې څوك نیالی نـه راوړي او ولې دی دغو خلکو تـه ښکنځل نه کوي او دوی نه وهـي؟ محصل او داسې ښه سړیتوب چې په چا دې غرض نه لري.

بنګ بـې لـه دې چې وپوهیږي چیرته درومي ، بلاارادې روان دی . یو دکاندار ور باندې زغ کړ :

او - بنی !

ده مخ ورواړاوه او هغه ور ته وویل چې:

په بنی کـې دې څه شی را بار کړي دي ؟ خرڅوې بـې او که نه؟

ده په ډیره معصومانه لهجه ورته وویل چې : زاړه کالـي پکې دي ستا دښې نه را معلومیږي ، خو کـه یې را نیسې زه هم لاس نه تر نیسم.

- یه پاسنیه: زاړه کالي څه کوم. ماچې ویل (شنی) دې له کومه ځایه راوړې دي - تیرسه! تیرسه! زاړه کالي دې دورې در ګوزوه دمور دې....

بنګ په دې خبره چې دموردې ..... یـې ورته وویل ډیر خپه شو او بیر ته را وګرځیده اوورته یـې وویل چې:

دا ښکنځل دې ولې را ته وکړل؟ خوسپین پښتون یم ډیر لوی‌تیری دې را باندې وکړ ! ګوره ! سبې خولـه خوځوك چا ته نه پریکوي .

- تیرسه ! تیرسه! پریږده دا منطق اوفلسفه دې دمور دې ...پرته

کره مخ دې ، کـه نه وې والله دا ګرده کوزه اوبـه خوبه دربانـدې وشیندم.

- وبنې! بیا دې سبې خولـه پربکره...... ولې خو اخر تاهم کږه لونګۍ ترلې ده او سپین کالي دې آغوستي دي . خپله خوله دې په واك نه ده.

په دغه وخت کې درې څلور نورکسان پسې راتول شول یوه سړي بنګ سوکـه پورې واهه او دوکاندار ته یې وویل چې :

نه یې ګورې چې صحرایي دی او نوی لـه غرور غو څخه راشوی دی؟ په توکو او ستاسې او رموز په اصطلاح ګانو څه پوهیږي؟ څه تیر سه ! پاسنې کاکا ! خیر دی څه ! خیر یوسې ! جنجال مـه جوړوی ! غریب سړی یې ! کـه پولیس دوخبرشو بیا بـه دې خوشې په خوشي سرګردانه کړي! څه! پخپلې خواری بسې دې څه! هلـه خیر یوسې. ګام پرمخ واخلـه!

بنګ په یوه بلـه کوڅه راکښیووت ، ګورې چې یوښه لمر څر یکی دی او د ده په شان نور دېـربښي وا لاسره ناست دي . څوك د پېرتاګـه پـه سرونځو کې میږې غواړي ، څوك سـر زمونځوي څوك لـه پښو څخه ازغي کاږي، ځینو بیا لاسونه سره ور کـړي دي اوپه ناستو زور سره ښکاره کوي کله نا کله دخندا ترکهاری

شي او کله بيا د(واخ، واخ مردې کړم) زغ پورته شي.

ددې دلې دې خوا ته يوهلک ناست دی اوترمخ يې يوڅو سرې دشيو شپو دو دی په يوه خيرن او غوړ بخن دسترخوان کې ورته پرتې دي او پرله پسې دا ناري وهي : (هله! دکور پسنې دو دی دي ، هله ! وبې خورئ خوارو غريبه ارزانه دي ارزانه .)

بلې خواته يوبل زنکی ناست دی اووايي :(هله تودسوړسک دی تود.)

بنګ په زړه کې سوچ وواهه سوړسک نه غلمينه (غنمينه) دو دی نبه ده که څه هم سوړسک ارزا نه دی خو بيا هم (دکورپسنې دو دی) ډيرې پرې ښې دي اوبايدچې پر هغه ځان موړ کړم، وروسته به يې ګورو چې څه کيږي. په دغه وخت کې يې دخولې دخوند نارې تيرې کړې او مخامخ دو دی والاته ورغی او ددوو افغانيو دوې دو دی يې ځنې راو نيولې، دواړه دو دی يې په ښې تخرګ کې نغښتې سره کښيښولې . اوکيڼ لاس يې وروابچاوه او ددواړو دو ديو سرونه يې په يوه پلاځنې پرې کړل او په خوله يې ننه ايستل، بيا په داسې حال کې چې خوله يې ورو ورو ښوريدله دبوسرې خوا ته چې دواړه لاسونه يې پر تندې چترۍ کړي و واو يوازې ناست و ورتيرشو په دکه خوله يې ورته وويل :

ـ اسلاماليکم.

ـ مالیکم ستړي مه سې!

ـ کوردې ودان، خیر یوسې!

ناست سړي خپل یولاس لـه تندي څخه لیرې کړ او په هغه بې ده ته دکښیناستلو اشاره وکړه او ورته یې وویل :

ـ دلته کښینه ته هم دا ترموږ دخوا معلومیږې!

ـ هو! زه دغزني دعلاقې یم او ته دکوم ځای یې؟

ـ زه هم دغزني نه دورپورته سیمې یم .

بنګ له خپل تخرګ څخه دو دی راوایستله اوخپل دغه ملګري ته یې هم ست وسلاوکړه. هغه په داسې حال کې چې دو دی یې راماتوله ورته وویل:

لـکـه چې نوی ښار ته راغلی یې! که دې داسې غلمینې دو دی خوړلې په قرآن کـه به غران خو تر ملا کورته غوته یوسې! دلته خـو سړی ګذاره کوي لـه خپل تغر سره سمې پښې غزوي.

بنګ ورته وویل چې : څه وکړو وروره! موږ چې خوار یو لـه دغه خپل نس دلاسه خوار یو ، ته خوښه وایې ، خو نفس خورا ظالـم دی ، سړی تر حد تیر وي .

وروسته لـه یو څه ځنډ نه بنګ بیا ورته وویل :

ښه داسې مې پوه کړه وروره! څه خواري! ومزدوري مـونده کیږي او که به خپله ښې لا پسې وخورو او نس تورلاسونه به کورته ځو؟

څه به درته ووایم گلـه ؟ هرشی په‌نصیب اوقسمت‌پورې اړه لري زه دا پښځلس شپې کیږي چې دې دیار ته راشیوه شوي یم ، کلـه ناکلـه ختمې مونده کیږي مزدوري يې ښه ده دوره‌ځي‌نه، لس (۹-۱۰) افغا نۍ ورکوي خو کور يې خراب کړې په دې گرانـی او قیمتی ......هیڅ شي ته لاس نه رسیږي، هغه بلـه ورځ مو میلـه وکړه او په سوړسلک مو ځانونه مړ ول غوښتل،خو چې رښتیا درته ووایم ددې افغانیو سوړسلک چې مې وخوړ نو خولـه مې ونیولـه کـه نه وی‌ـموړ نه وم . ملگریه هو! دروغ به ولـې درته وایم- موړ نه وم بیا یې یوه بلـه گـولـه ورمانه کړه او وي ویل :

تـه خوزښکـۍ ښکاره کیږې . لاتر اوسه پورې د دنیا سرې تودې‌در باندې نه دي تیرې شوې ..... لـه ځان سره پام کـوه، بې ځایه خرڅونه به نه کوې ، خو کـه مې دزړه پوښتنې زموږ هم ځان په وا ک کـې نـه وي ، تل مو شي ته نه خولـه دربیږي او نه لاس ، کـه نه وي ځینې ښه پوه خلـک دلته شته چې‌تل دماښام په مهال دباندې کلیو ته ځان باسي او یا په وچو نوتانو خپلـه‌گذاره کوي. ولـې که داسې ونه کړې، نود عیال به خولـه کـې به څه ور اچوي .

بنگ ورځنې دنوم پوښتنه‌وکړه هغه ورته‌وویل‌چې‌زمانوم‌خاورې دوران.
ـ خاورې مه شې. دورانـه وروره ! څه به درته وایم په همدغه کوچنی

ولږ عمر کې را باندې دادم او درخانی قصې تیرې شوي دي ، دومره زحمتونه او تکلیفونه مې ګاللي دي چې ډیر خلك به یې ونه شي ګاللی ، خو دومره خبره ده چې خدا ی پاك بنیادم ته طاقت ورکوي. نه دې دي اوریدلي چې خلك وایي ( انسان تر ګل نازك او تر کاڼي کلك دی ) که دغسې نه وای نو بایدپه دې مصیبتو اوخوا ریو کې سړی اوبه شوی وا ی.

دوی دا خبرې او اترې سره کولې چې یوسړ ی راغی چې څوکسه مزدوران دختو دپاره په کار لري . ټول ناست خلك په یوه پلاولاړ شول ، هرچا کوښښ کاوه چې لومړی ځان وروړسو ي او خپل ځان ورسره ځیره کړي دغه سړي له هغه جملې نه پنځه کسه مزدوران چې ورنژدې وو خوښ کړل او له ځانه سره یې بوتلل. په دغو پنځو تنو کې هغه سړی هم و چې دبنګ سره یې خبرې کولې. هغه دکار په ترتیب پوهیده. څرنګه چې یې دمزدورانو غوښتونکی ولید ور په هوا شو او ځان یې دهغه ترزامې لاندې ودراوه . بنګ دمزدورانودې ناځاپې نارامی اولاس وپښې وهلو ته حیران شو ، په هغه ملګري یې ګوري هغه موندلای نه شي .

بنګ پوښتنه وکړه چې دلته دادومره مزدوران خوا ران ولې سرګراغونډ دي ؟او دڅه دپاره دې لمرڅریکی ته دادومره خلك سره ناست وي.؟

یوبل مزدور ور ته په خواب کې وویل چې : داخو دمزدورانو بو ډول منډ یې غوندې ده ، دلته هغه ټول کسان سره راغونډیږي چې په خوارۍ غریبۍ پسې له کوره راوتلي وي او غواړي چې دغه ډول کارونه او مزدورۍ ځان ته پیدا کړي. او په دې سیمه کې چې دهر چا مزدور په کار شي هغه دلته را ځي او له دغه ځای نه دخپل احتیاج په اندازه نفر بیایي .

ترلسو بجو پورې بنګ په دغه منډۍ کې ناست و او په دې انتظار کې و چې اوس به یې څوک کار ته بیایي ، خو په پای کې یوبل مزدور ورته وویل چې :

تراوسه پورې چا دکار دپاره بونه تللې، پس لـه دې ددې چا نس اوبرابري ډیره لږه ده چې څوک دې بوځي ، ځکه چې کار دورځې لـه سره شروع کیږي ، نوبنه درته داده چې ،و لاړ شې او په کومې بلې غریبۍ پسې وګرځیږې ، داسې ونه شي چې دلته څه په لاس درنه شي او لـه بلې غریبۍ نه هم ووځې .

بنګ فکر وکړ چې ولاړ شي چې په شاوخوا کلیوکې وګوري او هلته دکارموندلو دپاره لاس وپښې ووهي . ماسپښین په درې بجویې یو څه کار مونده کړ ، هغه کاردا و چې دانګورو یوڅو جووې به کاږي. ده دغه کار ورځنې په اجاره واخیست . دباغ څښتن ورته وویل چې

يوم به لـه خپلـه ځانه راوړي ! ځکـه چې په جوو کښلوکې دا قاعده او اصول دي چې يوم به هم مزدور پخپلـه لـه ځانه سره راوړي .

هرکلـه چې بنګک يوم پيدا کولى نه شو نو طبعاً دا کار ورځني پاتې شو.

دباغ ځښتن ورته وويل چې: که کوم شی را نه په ګروی کښېږدي نوزه به لـه يو چا ځخه يوم درمونده کړم، خو ده بې لـه هغې زړې بنې او زړو کاليو ځخه بل څه نه درلودل.

بنګک وروسته تردې چې شپه يې پـه هغو کلېو کې تيره کړه سهار وختي بيرته ښارته راغی . لومړی دمزدورانومند بې نه ورغی. هلته يې خپل بـازار بيا هغسې سوړوليد، بيا راغی ګمرک ته. خيـال يې وچې ګوندې هلته به دځينو موټرانو د بارولو او خالـي کولــو کار مونده کړي ، خولـه هغه ځای ځخه دګمرک پنډيانو او جواليانو پـه بيره راوشاره او دپنډيانو مشر ورته وويل چې:

کـه بلـه ورځ دې خوا ته راغلی وې پښې به دې ماتې کړم . خو دده دښو طالعو په وجه بوه سړي ورته زغ کړ چې دلته وځکې پاکيزې ورشه ! کار به درته درکړي ، کـه څه هم نا وخته دی خو بيا هـــم ځښتن يې ضرورت لري - ګوندې قبول دې کړي .

د وځکوخاوند ورته وويل چې: اوس خو سره غرمه ده اووه نيمې

بجې دي ، خلك چې سهار لمنځونه وکړي سمدلاسه کارته کښيني دادی لمرسرته راغلی دی ـ که دمابنام تر اذ انه پورې پاتې کيږي نو وا به دې خلو او کـه نه وي نو څه به مخه دي ښه !

بنگ ور ته (ښه ) وکړه او سم دلاسه يې په کار پيل وکړ. بنگ په خورا تادی په کارگوتې پورې کړې اوږ ژر يې په دوارو لاسونو وځکې پاکولې. البته دا دومره وځکې يې هيڅکله په يوه ځای نه وې ليدلې او چې د ځښتن نظر بـه يې بلې خوا تـه شو ، نو ده بـه يوه دکـه لپه وځکې خولې ته واچولې. دی خورا دارېده چې کـه د وځکو ځښتن مې وگوري ، سمد ستي به مې لـه کاره وباسي اويا به تاوان را څخه واخلي. خو په دې وضعيت دير وارخطا شو چې هغه وليد، مگر څه يې ورته ونه ويل اونه يې ورباندې ځان پوه کړ دبنگ ژبه د ډيرو وځکوخوړلو په سبب ژر تنباکې شوه او دنورو وځکو خوړلو څخه يې بد راغلل.

دغرمې په دو دی باندې دسوداگر نمايندمو ويل : هلکو اهر څوك چې دغرمې دو دی دپاره دوه گون نوټ غواړي هغـه دې راشي او که يې نه غواړي البته مازيگـر بـه خپله مزدوري تولـه په يوه ځای واخلي.

بنگ ورته را وړاندې شو او ورروسته لـه هغه چې دوه گون نوټ

بې ترینه واخیست، نو په پاسته مګر جدي زغ یې ورځني پوښتنه وکړه: صاحبه! زه خو سهار لږ څه وارخطا غوندې وم او دخپلې مزدورۍ پوښتنه مې ونه کړه چې دورځې به څو راکوئ؟.

دا ته څه پوښتنه کوې؟ ته به وایې دغو نورو مزدورانو ته مې له تا نه ډېرې ورکړې دي؟ دچا حق نه خورو. په ختو کې چې تول ورځ ختې، خټې، خاورې او نیزې وړې مزدوري لس افغانۍ درکوي دلته خو کراو ناست یې - نمدې پټې په ختو او نه دې لاسونه په ختو ککړ وي او وځکې هم خورې! د ورځې څلور افغانۍ درکوو! که دې خوښه وي ښه ترښه او که نه وي څه - ځان نیم روزه کړه!

بنګ له ځان سره فکر وکړ چې دغه وځکو والا ښه وایي - کار خو یې دومره سخت نه دی، صرف دمزغي رګونه مې لږ څه وچ شي، که نه وي نور خو ارام یم. باید لږ څه زورور کار مونده کړم چې هم یې زحمت ډېر وي او هم یې اجوره زیاته وي دا سپک کار دی باید همدغه ډول سپکه اجوره ولري.

بنګ چې ماښام مزدوري واخیستله، بیا دیدید و دپاره یو کلي ته ولاړ. ده لومړی هڅه وکړه چې په مسجد کې بیده شي. خو چا ورته وویل چې په دغه مسجد کې څوک نه پریږدي. نو ناچار دیوه نژدې کلي مسجد ته ورغی.

سهار وختي بيا دمزدورانو منډ يې ته ورغی. په هغه خپل پرونې آشنا پسې گرځي - کله وايي چې اوس لا بيخي وختي دی، هغه به هم گليو ته تللی وي او ناوخته به راشي، کله وايي چې هغه به پر هغه خپل پرونې کار باندې پاتې شوی وي او دمزدورانو منډ يې ته به دسره را نه شي.

په همدې تردد او تشويش کې وچې سترگې يې په هغه ونښتلې او هغه يې سوکه تر لاس ونيو: زه خو په تا پسې گرځيدم ! موږ خو پرون ښه کار مونده کړ، ته به دکار دموندلو دپاره لاس وپښې وهې - داسې نه ده چې بدايان به په تا پسې راځي اوزاري به درته کوي، بلکه ته به په بدايانو پسې زغلې او ځانته به کار پيدا کوې، لکه چې پرون ما وکړل. اوس خو دمني موسم دی زموږ اوستاسې مزدورانو دلې دې سيمې ته راشيوه کيږي او زموږ او ستاسې په شان ښه خواريو او مزدوريو پسې گرځي.

بنگ خپله قصه ورته وکړه - دده ملگري ددې خبرې په اوريدلو چې پرون يې په لپو لپو وځکې خوړلي دي او ژبه يې برې تنها کې شوې ده دخولې لاړې يې دا دړل تيرې کړې چې غړج يې بنگ پخپله واوريد.

بيا دوران ورته وويل :

چې راځه! دمزدورانو غونډې ژوند کول در وښیم! ته دمزدورانو اوخواري کنبوله ډلې یې ! خو داسې څرګند یږي چې ژوند دسوداګرو او بدایانو خلکو په شان کوي ، ځکه چې پرون دې دوې غلمبنې دودې په تخرګ کې نیولې وې اودا ډول دې خوړلې ته به وایې چې یولوی زمیندار یې او یا دیو ښه دکان څښتن .

دوی دواړه دمزدورانو لـه منډیې نه لرې یودکان ته راغلـل چې دهغه ددروازې یوه پلـه پرانستل شوې وه او بلـه یې لانه وه خلاصه شوې . دنورو شیانو په جملـه کې په یوه زړه توکرۍ کې یوڅه توت پراته دي . دا توت په متې ژیړ ښکاریږي ، یعنې ډیر زاړه توت دي دهرې دانې ځینې برخې یې لـه ډیر زوړ والي څخه تورې اوښتې دي . دوی دواړو دیوه غران دغه توت واخیستل او دوران په خپلـه لمن کې واچول او بیا یې ده ته وویل چې :

راځه ـ بیر ته دمنډیې مخې ته ورشو اوهلته به دا توت هم خوړو اوکـه څوك راغلـل چې مزدوران یې پکار وي نو موږ به ورته تیار حاضر یو .

دتوتانو دخوړلو په وخت کې دوران بنګ ته وویل چې ته خو پـه دې ښار کې بیخي نابلده غونډې ښکارې. دلته په څلورو خواو کې دمزدورانو دغه ډول ( منډیې غونـډې ) ځایو نـه شتـه چې هلتـه

دوی دکار دموندلو دپاره سره را غونډېږي. نو ښه داده چې زه اوته ژر ژر دغه توت وخورو او لومړی تر هغه چې لمر را پور ته کیږي موږ (کـه مو دلته کار مونده نه کړ) هغې بلې خوا ته به ورشو اوهلته به دیو څو دقیقو دپاره انتظار وباسو کهموهلته هم کوم کار پیدا نه کړی شو، نو البته دریمې یا څلورمې خوا تـه بـهځو . مقصد داچې یوکار دځان دپاره پیدا کړو اوورځ را باندې عبثه تیره نهشي. ما پرون دوې خواوې راغونښتي او پلټلـې وې او چې دلتـه راغلـم هغه و چې کـار مې مونده کړ.

په دغه وخت کې لمرځرك وواهه دمزدورانو شورماشور دی څوك سورسلك اخلـي اوڅا پهځادرباندې توتان اچولـي دي اودرې څلورکسان ورباندې راټول دي اوژر ژر یې خولـې ته اچوي.دلمر وړانګې لومړیددوران په مخ ولـګیدلې چې دیوال ته یې شالـګولې وه او مخ په لمرخاته ناست و ددوران سره بخنه کونډئ زیره یـسې نوره هم پسې سره غونډې کړه او دزیرې تارونه یې کـه څه هم لـه دیرې مودې را ایسته نه وو پر یمنځلي راښه ورو ځلـول.

په داسې حال کې چې دوران پهځپلو سترګو باندې یولاس چتری کړی و او په بل یې ژر ژرتوت خولـې تـه اچول، بنګ ورځنې پوښتنه وکړه چې :

مانبام مانبام ته چیر نه پریوزې ؟! هر چیر ته چې ځې ما هم له ځانه سره بیا یه! زه خو نلتك نه لرم، برا یې مې تړولـه شپه ساړه شوي دي ، کوم ځا ی کې چې ته ځملې هغه ګوندې لږ څه تودوي.

ـ ما خو تراوسه پورې تا نه تپول احوال نه دی ویلی ځکه ما وتـا ددیرو خبرو وخت هم نه دی موندلی . زه د... صاحب مبارك ځا ی ته ځم . زما خو ورور هلته دی . زما ددغه ورور ښه پـه داسې حال کې چې ختې یې کولې ما ته شوه، هغه مو ور وتړلـه ، زموږ یـــو وطندار دی چې هغه لـه ..... مبارك سره تپول عمر تیر کړی دی. بیا ددغه وطندارزړه را باندې وسو او زما ورور یې هلته بوت . ځونعویذونه مو ورنه راوړل ، څو دمونه مو پرې وکړل ـ هیڅ اثر یې ونه کړ. ای وروره ! څه به درته وایم ! تولـه ورځ مزدوري کوم او هغه ددې ښو خلکو قربان یې شم، په خوړو کې راځخه ځي تراوسه پورې مې (۸) افغانی یوازې په تعویذو او په شکرانو کې ورکړې دي . دهغو دپوښو بیعه خولا ایسته واچوه . څه وکړم دمور زو کړی دی ، موږ وایو نن به ښه شي اوسبا به ښه شي ، خو دی لاهغسې دی ، هیڅ ښه والی نه ترینه ښکاري . صاحب مبارك تل دم باندې کوي ، ګوندې بو وخت ښه شي نو هلته زه تا نه شم بیولی ، ځکه چې د...... صاحب مبارك ناظران او خلیفه ګان دغسې ښې، والا خلك ښه نه خوښوي او

وايي چې دوی حجرې لـه سپږو ډکوي. البته کهڅه درپورې وا ی بيا دا خبرې دومره نشته .

بنګ دهمدردی او تأسف په توګـه سرو ښوراوه او ترشونداتو لاندې يې دهغه دژ ر صحت دپاره غوښتنه وکړه. بيا دوران ورته وويـل چې : وروره ! درڅه ، ناوخته شو، ګومان نه کوم چې په دې خوا کې دې نـن څوك مزدوري مونـده کړي. درڅه، هغه بلـې خواتـه . هلته ګوندې دګمرك دخلکو اويا خو د ريو دکار خانې والاوبو څوك په کار وي.

دواړه په بيره لـه هغه ځايه سره را رهي شول او ځانونه يـې دمطلب ځـای تـه ور ورسول اوبې لـه دې‌چې کښيني‌سره ودريـدل ددوی دواړو سترګـې هر هغه څوك چې لږڅه ښوی اوپاك کالـي يې اغوستي و ي تعقيبوي او په‌خورا چمتووالـي‌سره دهغه خواته ګوري هـر هغه ډ و ل سړی چې د دوي خوا ته را دروميي ، کـه څه‌هـم بلـې خوا ته تير بزي دوی اونور مزدوران په يوه پلا دهغه وخوا ته‌هڅه وروکړي او دټولو سترګـې دهغه سړي په سترګو او تندي کـې ښخې وي. نابلـده خلـك خو ددې ډول حرکاتو په‌مقصد ښه پوه نه وي او ګومان کوي چې مزدوران د دوی دوهلو او پر دوی باندې دحملې لـه پاره ورځي او خورا ځنې وبيربزي. وروسته لـه څو دقيقو يو هلـکی

چې دچپراسي دريشي بې آغوستې وه را ښکاره شو. هغه لا لږ څه لیرې و چې وې ویل :

هلکو مزدورانو ! نن ستاسو طالع را ویښې شوې دي : فابریکه پنځه څلویښتو کسو مزدورانو ته دخپلو ورېو دمینځلو دپاره ضرورت لري یو تر بل پیش دستي مه کوئ تاسې ټول دې ایله څلویښت کسه یاست . درځئ چې ټول بوزم .

یوه زغ کړ چې : هلکه ! دفابریکې مزدوري څوده اوس بې لا را سره خلاصه کړه.

چپراسي وویل : دا زما په اختیار کې نه ده هرڅه چې مدیر صاحب وویل هغه صحیح ده.

بنګ په زړه کې خورا خوشالي احساسوي او فکر کوي چې ګوندې دا کار به ددیرو ورځو دپاره وي. ده خپله دا هیله دوران ته هم وویله چې هغه هم تائید کړه. دوران ورته وویل : ورم کال موږ تقریباً دوه میاشتې بشپړې په هم دغه فابریکه کې کار وکړ او هر یوه ته ښه مزدوري ورولویده خوما چندان څه نه تر وایستلای شو ، ځکه چې زما خرڅ دیرو : هره ورځ مې غلمینه دوډۍ او پیاز سره خوړل. نوکه رښتیا درته ووایم کله کله مې چای هم چښلي دي. وروره ! خو انسانان یو ، ستړي شو ، تا ته به نه وي معلومه چې بو

تربخ چا ی په يو بشپړه (۲۵) پولـی ورکوي هغه وخت مزدوري هم دومره نه وه لوړه ، خو بيا دو دی هم دومره ګرانه نه وه . سږکال مزدوري ښه ده خو دو دی اورخت ډېر لوړ دي . خدا ی مودې پرده وکړي ته درځه ، هر څه به خدا ی آسانـه کوي.

دمـزدورانو تولـه ډلـه.د فابريکـې پـه وره کـې ودريدلـه چپړاسي ورته وويل چې اوس به زه مدير صاحب ته رپوټ ورکړم هغه به ميرزا را وليږي چې ستاسې نومونه وليکي .

څودقيقې وروسته ميرزا راغی اودټولو نومونه او داصلی تاټوبي پته يې وليکلـه او بيا ميرزا په اوږ زغ و ويل : ستاسې دورځې مزدوري به شپږ افغانۍ وي. پياده باشي راغی اوټول يې دفابريکې دانګړ خواته رهي کړل. دفابريکې د انګړ په مينځ کې يولوی حوض دی ، په هغه کې نور خلـك هم وړی مينځي او دحوض شاوخوا ته يې دوچيدو دپاره اچوي. بنګـ او دوران دوارو دنورو مزدورانو پـه ډلـه کې دوړ يو په مينځلو پيل وکړ : ده باشيان هرې خواته ګرزي، کوچنۍ لښتې يې په لاس کې دي . هرڅو قدمونه چې واخلي وايې : هلئ ! خيريوسئ ! لاس وښوروئ ! دو دی حلالـه کړئ ! هلئ !

دده باشيانو غوږونـه خورا درانه شوي دي . علت يې همدادی چې دوی ترمازيګر پورې همدغه ( هلئ ژر شئ) نارې وهي. په تيره

بیا چې رئیس اویا معاون راغلی وي او په خپل دفتر کې ناست وي، نو
دده باشیانو غلبلې تر پخوا هم ډیرې شي، ماز یګر خو دټولو غاړې
بوږې وي بنګ دوران ته وایي: کاشکې یوه پلا مو دننه فابریکه
لیدلې وای، چې څه شی دي ږغ خو یې غوږو نه کښوي. که پخپله
ماشینان مو لا لیدلي وای عجب ښه خوند به یې کړی وای.

په دې وخت کې دننه په ماشین خانه کې او دباندې په انګړ کې
یو څوږ جوړ شو او خورا برو- برو جوړشو. یوه ده باشي پر بنګ ږغ
کړل: وروره ! کاردې کوه، لږ څه لاس وښوروه، نه وینې چې
معاون صاحب راغی؟ دخدای روي ته وګوره لږ څه ژر ژر لاسونه
وښوروه خوشې به مو بر باد کړي.

بنګ چې سرپورته کړ ګوري چې دله خلک په یوه سري پسې
دي، دمخه چې ځي خورا غټ او چاغ سړی دی، نس یې ښه ډیر
دده دمخه ځي، پندبینت یې لاس کې دی که څه هم هیڅ یخ نشته
بیا هم ده خورا ښه ډیر وړین کالي آغوستي دي. دده یوه خورا ښه
دقره قل خولی په سر ده ځینې خلک په ده پسې مستقیماً تر شا ځي،
ځینې په ارخو، خولږ څه تر شا ورسره درومي. دوړ یو مینځلو دحوض
سیمې ته چې راغی نو یوه ګړی یې ښه ونیوله او یو عمومي نظر یې
په کارګرانو واچاوه، بیا پخپله ورتیت شو او یوه توټه پر یمنځله شوې

وزې يې چې ذوچيدو دپاره يې اچولي وې، له ځمکې ځخه را واخيستله او هغه يې کلوښته کلوښته کړه او بيا يې ستر گو ته ورنژدې کړه.

- که څه هم پاکې معلوميږي خو بيا هم چې سړی په ځير ورتــه وگوري نو لږ څه خيرنې دي - ده باشيانو ته امر ورکړ چې په مزدورانو يې ښې مينځۍ او بل بايد په دې مزدورانو کې چې وشي ، هغه چې ښه کارکوي هغه بايد دتل دپاره دلته کار وکړي او هغه چې لټان دي او يا کمزوري دي هغه بايد پرې نه ښودل شي چې دلته خپله ورځ تاوان کړي.

يوه مامور چې ژر ژر يې ساشرله ، وويل : بلې صاحب ! موږ همدا دول ترتيب نيولی دی.

(بلې صاحب) دې پـه سرو وهه ! چيرې دې همدا دول ترتيب نيولی دی ، هغـه سپين سرې ښځې نـه وينې او پـه خوا کې يې هغه سپين ږيري نه گورې ؟ شل پلامې ورته ويلي دي چې دا خو خيرات خانه نه ده، فابريکه ده. دلته بايد ډير ښه کار کوونکي راشي چې کـاروکړي نه دا چې سپين سـرې اوسپين ږيري اوشل وشوت راولې او دفابريکې پيسې ورکوئ. نه گورې چې فابريکـه نظر دنورو موسساتو گټو ته په نقص کې ده، هرڅوك خپلـو شريکانو ته تر (۳۰، ۴۰ ) په سل کې کمه گټه ورکوي خو موږ چې ډير مړونه شو نوتـر (۲۰، ۲۲) په سلوکې اضافه نه شو گټلای.

- (بلې صاحب) تاسې ښه واياست ! ستاسې خبره سره زرده، تاسې مور وپلار ياست ! دا هغه سپين سرې ښځې دي چې څو ورځې دمخه موڅواب ورکړ خو دفابريکې دمخه يې بغارې او چغارې وهلې او نژدې وه چې دفابريکې ټول کارګران را ته بد ورده کړي ، نوبيا حاجي صاحب امروکړ چې په کارکې بې واخلئ اوژرژر بې دنورو کارکوونکو له ستر ګو نهامې کړئ . تراوسه پورې په کارآخته دي زموږ په دې کې څه قصور نشته.

ده غروب وهل اوبې له دې چې نورڅه و وايي مخامخ دماشينانو خونو ته ورننوت او هلته په ماشينانو وګرځيده. دماشينانو دهرې برخې باشې دماشين په خصوص کې څه ورته وايي. دماشينانو دتکهار په اثر هره پلا باشي دده په غوږ کې په زوره زوره خبرې کوي ، دادوره بې په يوه ساعت کې وکړه اوبيا دباندې راووت ، په دې وخت کې دوه درې کسو کارکوونکو چې جامې بې ټولې په تيلو غوړې وې اوجامې بې لاڅه چې خولې بې ددېر غوړوالي له لاسه تکسې نورې اوښتې وې يوخط دمعاون صاحب په لاس کې کېښود. معاون صاحب چې خط ته وکتل هغه يې په لاس کې ومروړه اودبوه کارګر په مخ بې ور وغورځاوه او په تربوتندي يې له ځانه سره وويل :

ځئ ورك شئ خدای مو خوار کړه ! والله چې ټول له نرۍ

مړه او پته شي که تاسې کارګران خوماړه شئ . هره ورځ ستاسې یو جنجال وي: کله تنخوا ډیره غواړئ او کله بیا دریشي غواړئ !سړی موبه کومه خوا پسې ورسیږي؟ دغو نه دفابریکې عایدات نه وي لکه چې پرتاسې باندې یې چې خرڅوي. ورك شئ خپل کارکوئ ! دریاست مقام دا خبرې او چتیات نه شي اوریدلی ! کهچیرې موږ پخپله دا لازمه وګڼله البته ستاسې ددریشیوپه باره کې بهغور و شي.

دوربو مینځلو حوض تهچې را نژدې شو بیا یې یوه مامور ته مخ راواړاوه او په یو معتدل زغ یې ورته وویل :

څرنګه چې ما درته وویل هغې وکړئ دکار خلك پر بزدئ او دانورو ته چې تخپله مزدوري نه شي ګټلی په یوه داسې ترتیب سره څواب ورکړئ چې دا نور مزدوران پرې پوه نه شي . تا چې دا دومره غټه خولـی په سرکړې ده او دا ناپوه خلـك ترڅان نه شي تیر ولای ، نو ستاکمال څه دی ؟ یهورروره ! علتیې معلوم دی :که فابریکه ستاوا ی اویا دې یوه برخه پکې درلودا ی، نو هلـه به تا لیدلي وا ی چې به څه ډول دې دغه مات او ګو ډ مزدوران څنې شړلای . اوس خو دې دومره زړه نه سوځي. څکه چې وایې زما یې په څه ؟

یوساعت وروسته یې دغرمې توپ وویشت اوټول مزدوران دډو ډۍ خوړو په نامه لـه کارو څخه راووتل ، خو ډیر یې په لمانځه

پسې ولاړل او څوك هم سپوري او ځيني لا لمړ ته وغزېدل. ځينو ځينو ګولـه دودی لـه خپلو ملاو څخه را خلاصه کړه او داوبو دويالـې په غاړه يې په خوړلو پيل وکړ .

بنګ دوران ته وويل چې : راځه ! نوکی دودی را نيسو اوژر ژر يې وخورو بيا به دننه ماشينانو ته ورشو چې هغه وګورو اوهم يې کارکوونکي ووينو چې دا لا څه ډول خلك دي .

دو ی دواړه لـه فـابريکې څخه را ووتـل اووروستـه تر تلاشي ور کولو يې به بيره يو څه مړی را نيوله او هم يې څه پياز ورسره واخيستل ، دا ځکه چې دوی دواړه خوښ وو چې نن بيکاره نه شول پاتې او کار يې مونده کړ. په داسې حال کې چې هر يوه خپلـه دودی په تخرګ کې نيولې وه او پياز يې په لاس کې و- خوړلـه يې دماشينكارانو خوا ته را غلـل .

لومړی يـو چارا وګرځـول چې دننه د ماشينانو ځای ته مه ځئ . خودوران ورته نـارې وکړې چې دغه ملګري مې تر اوسه پورې دغـه شيان نه دي ليدلـي. بايد ويې ګوري. هغه تندی تريو کړاو ورته يې و ويل : ځئ ! ننوځئ خو ژر بيرتـه را وو ځئ ځکه کـه د ماشينانو مدير وليد لاست يقيناً به مو ډيرو ډبوي.

دننه ګوري چې ماشين کارانو شنه شنه بالاپوشونه آغوستي دي ،

پنځلس یا شل کسه سره ناست دي او ډوډۍ خوري ـ دچایو چاینکې هم ور ته پرتې دي اوهرڅوك پخپله پیالـه یا ګیلاس کـې چا ی ورتویوي او له ډوډۍ سره یې خوري . دډوډۍ خوړلو پهوخت کـې هم خوراتودې خبرې سره کوي : ځینې قسمونه خوري چې کـه بیاکا ر را باندې وکړي اوځینې وایي چې هرڅوچې په قهرشئ هم والله دریشۍ خوبه را نوې نهکړي، ځوك خاندي ځوك متاثر دي. یوه کاریګرزغ کړه: اوه دا بنې والا صحرائیان چا دلته را پرینښي دي ؟

یوه بل بنګ ته وویل : اوه صحرایي! ته ماشینکار کیږې ؟ را شه ! شاګرد دې کـړم په لږه موده کـې به ښه ماشین کار شې .

یوه باشي پرزغ کړه: وځئ ! او صحرائیانو ! کوم شی به ورك شي بیا به یې په غم کـې پاتـې یاست!

بنګ ته دکارکوونکو دې ژوند خورا خوند ورکړ ،پهتیره بیا د،پې تول ( سره ) ا یشي. هیڅوك آرام اولټ او یا غیر مربوط نه برینښي. هرڅوك یوځه وا یې اوهرڅوك یوځه کوي دا ډول نه دي لـکـه نور مزدوران یا بزګران چې یوبل سره نژدې نه برېښي.

دوی دواړه په منده لـه هغه ځایه راووتل او هغه ځا ی ته بیرتـــه راغلـل، چې هلته دوی ناست وو او وړی یې مینځلي. بنګ ددې ماشینانو اوماشینکارانو په لیدوخوراخوښ شوی و او لـه ډیرې خوشحالۍ

نه يې زړه غورځيده ويې ويل :

دورانـه وروره ! والله دا خو عجب شيان وو اوعجب خلك وو لـكه چې خورا زوور ورهم وي، ځکه‌چې په وازه خوله بې دفابريکې ښېښتن ته څه کجا وې نه ويلې؟ والله که زه ماشينکار و ی چې خپل ماشين خومې داسې ساتلای لـکه د لاندي مز .

په دې وخت‌کې بوده باشي بنگ‌اودوران ته زغ کړل چې ولاړشئ، د فابريکې پرخوله کې وړی تلل کيږی ـ هلته په تول‌کې کومك وکړئ.

دوی دواړه او چته را ولاړ شول ـ په تيره بنگ خو په دې دېـر خوښ شو چې د نا ښتې لـه کاره څخه يې د ولاړې په کـار اچوي .

خورالويه تله ولاړه‌ده‌اووړی په تللې کيږي. دوړيو ښېښتنان تلې ته‌خورا نژدې ولاړ دي، کله‌دتلـې‌يوې خواته وگوري او کله بيا بلې خواته او بيا پور ته‌شاهين ته گوري . خوکه‌هرڅومره ناړې‌کړي‌چې داتول صحيح نه دی او ترازو با يد پرځا ی ودرول شي ـ څوك غوږ نه په باسي .

تولگر خورا پوچ خولـی سړی د ی او بې له‌کوم دليل اوضرورت ته په قسموپيل وکړي چې د ه هيڅکـله په ترازوکې څوك نه دي دروهلي. په دې چې پلار يې د لويولويو سوداگـر ودوړيو ترازو داري‌کوله خورا افتخار کوي. هر پوونده خورا ښه پيژني چې مازې (۱) دپلار نوم

(۱) مازې = محضې

ورواخلي د ی بې دنیکه کړه هم ورته بیان کړي . سره له دې پوچې خولې بیا هم دپووندهو زړه ته تیر د ی او وروسته له هغه چې دیوه سړي وړی ور وتلي ، نوهغه بیا یوشی ورکړي . ده د دې شي دورکولو نوم (رواج) ایښی ، مثلاً : که چا لږ څه سستي وکړه او یا ده د هغه له بڼې څخه معلومه کړه چې څه نه ورکوي او یا یې په را تلونکي وخت کې نه ورته راوړي ، نو د ی بنه جدي غونډې ورته ووایې : (کاکو! زموږ رواج دې لکه چې ترګوتو نه راتیریږي!)

که چا رواج ورنه کړ هغه سړی بې تر ډیره وخته پورې نه هیریږي او که ډیره موده وروسته بیا ورته راشي هم د ی ورته وایې : (و مې پیژندې ! هغه ځوان یې چې زما رواج دې نه و راکړی . ) البته دداسې خلکو وړی په دقت تلي اوکله کله خو یې ځیني ورګونه خلاص کړي او تک یې وهي او بیا یې دتلې منځ ته وروغورځوي.

بنګ په خورا جدیت خپله غیږ په ورګو ډکه کړې او یوې خوا ته یې غورځوي . دی دا کار دکار دخا طره نه کوي ، بلکه شوق یې شوی او پر هغه باندې خوند اخلي.

یو وار بو وار ترازو دار ورته ووا یې : پرمتو دې برکت شه ! کار دغسې وي لکه دغه هلک یې چې کوي ! مزدوري چې اخلې هغه

دي روزي شه! دانور لتان باید ودغه هلك ته وګوري او دکارکولو طرز له ده نخه زده کړي بیا .........

- (یاره ! که زما واك وای نوما خوبه ستا مزدوري یوپه دوه در کړي وای، خونه وکړو په دې ملك کې ځوك زحمت او ښه کارته په درنه سترګه نه ګوري . تا ته خوبه یې هر ومرو څه انعام درکولای.

هله خیر یوسي تاسې هم دغه راز همت وکړئ لکه دغه هلکی یې چې کوي . )

په دې حال کې دمزدورانو عمومي نګران تیر بیزي. او دوربو ترازو دار پرزغ کړه:

صاحبه که یو څه عرض درته وکړم په قهر کیږې خوبه نه ! ؟ که فابریکې دغه دول لکه دغه (بنګث ته اشاره ) ځوانان یولس کسه مونده کړل، ددې فابریکې کارو بار به خورا ښه سرونیسي او دکارونو دیر ته پاته کید و هیڅ شکایت به پاته نه شي.

نګران بنګث ته وکتل: (آهو نودی به ولې زورور او ښه کارنه کوي خونوی ژبنکی دی . زه چې دده پرحال وم غرونه مې اړول - زه به یې سفارش وکړم، چې یوښه کار په دې ځای کې ورته ورکړي. رښتیا ده چې فابریکه خو دغسې مزدورانو ته چې دمتو زور یې دېر وي خورا احتیاج لري او هغوی باید په هره توګه چې وي لاس ته راوړل شي.)

دوران دخپل ملګري بنګ په دې حرکت خورا خواشینی شو او هغه یې دده دناپوهۍ علامه وبلله. دوران ورته وویل : هلکه ! خورا ژر ډیر باټ اخلې ! که‌دې څوك وستایي ځان ترپانه غوړځوې څه ځان خودې نه دی دربانده بارچې دا دومره په صداقت اودزړه له اخلاصه ښورې او کار کوې ! څه ګټه درته لري؟ اوڅوك به درته ووایې‌چې‌ها! تاښه کار کړی دی. نو ولې‌خوشې چتې په چتې دځان قوت ضایع‌کوې؟ اودخلکو دپاره درانده پیتي وړې! تا دلته‌کارکوونکې په نس ماړه لیدلي دي ؟ خوهرڅه‌چې ګټي‌هغه نورځنې څټې ـ دوی ته دومره ورکوي چې نه پرمري اونه پرپایي .

یوه ګړۍ وروسته یې بیا وویل: پروسږکال موږ دلته کار کاوه او دوړیو خورا لوی لوی وري مو یوې خوا بلې خواته اړول . زما یو بل ملګری وچې‌هغه‌هم‌خورا غښتلی اوراستمن سړی‌و ـ دهغه خوارکي اوږه وختله اوخورا ډیر په تکلیف اوزحمت‌کې و، نه یې غیـران وګاټه او نه یې کسیره . خوارکی بیرته کورته پرېښو تش لاســونه دپوونده وله کډوسره ولاړ. زما پخپله لاس له مړونده وخوت او پر خورا ډیرو ماجتونو او ښوخلکو وګرځیدم چې را دم یې کړي ، پـه پای کې یوه پنډي په څه خواریو بیرته کرپ‌سره وا چاوه او په کراره کراره‌ښه‌شوم . له هغه را ایسې مې‌ترزړه ایستلې ده‌چې‌بیاچیر ته داسې‌قدم

نه اخلــم چې ځان وځوروم .

یوبل مزدور پررا زغ کړه:

څه سره زرخونـه راکـوي چې داسې زوروور کارونه وکړو .دا مزدوري چې راکوي دا خو په متې زموږدنس دپاره سپوره دودۍ نه کیږي . خوکـه خدا ی دې نه کا کوم ځا ی مو عیبي شي، نو څوك به مو اوښکې را پاکې کړي ؟ دا دفابریکې خاوندان؟ یه ! یه! ما لیدلي دي دوی ته دمزدور مرګ اوژوند دیوې یکۍ غوندې اهمیت نه لري خوکـه دو ی ته لږڅـه تـاوان ورواوښت، نو غلبلې یې تر آسمـانـه تیرې شي.

ددې ټول کار په وخت کې دبنګ په فکر اوخیال کـې دماشینکارانو اونورو تخنیکي مزدورا نو شنې او غورجنې کورتۍ له نظـره دورې دورې ګرځیدې او دوی یې خورا ښه خوښ شوي وو، په تیره بیا ددوی فعال ژوند ده ته خورا خوند ورکړی و.

ـ دورانه وروره! راځه چې دواړه پهیوچل ځانونه پههغو مزدورانو کې سیهه کړو کوم چې دماشینانو کارکوي .

ـ دا خودومره ګرانه خبره نهبریښي ـکـه دې رښتیا زړه ورتـه شو ی‌وي نوزه به زموږ وطن دار ته چې دلته لږڅه اعتبار لري ووایم اوهغه ګوندې‌مرسته‌درسره وکړي! اوپه‌دغه‌ځای کـې دې ورګډ کړي.

ماښام دواړه هغه ځای ته ولاړل چیرې چې ددوران ورور پروت و.
یوه لـه خلیفه ګانـو څخه پوښتنه وکړه: دغه بل دې څوک را وستی؟ اخلاص مند دی که یه؟

هغه ورته وویل چې دا زموږ دسیمې هلـك دی او نن یې زما سره یوځای کار کاوه. څه شی نه لري چې په لنګر کې یې واچوي.

خلیفه ورته وویل: خدای دې خوار کړه ریښتیا چې ښه یې ویلـي دي: موږك په‌غارنه شو ننوتلای ده جاروهم ځان پورې وتاړه دا غواړې چې سبا دې ورورهم دروباسم؟ زمانه خرابه شوې ده. پخوا به خلـکو تولـه ورځ مزدوري کولـه اویا هره لوبه چې یې کولـه یو پنځه پیسې بـه یې ددربـار په لـنګر کې اچولـې. اوس خـلـك داسې سپین سترګي شـوي دي چې دمبارك دربار او جـیب ته یې لاسترګې نیولـې دي او غواړي چې لـه هغه څخه ګټه واخلـي. توبه توبه خدایه!

یوه بل ملنګ نما سړي ورته را زغ کړه:

صاحبه! ته‌ښه‌وایې اوزمانه‌بیخي‌اوښتې ده، پخوا به‌دپیرو فقیرقدرو-هرچا به‌په‌درنه‌سترګه‌را ته کتل، دا زماله‌ز بانه کوه‌چې دلته‌دمبارك «په‌دربارکې به دیوې‌غوایـې حلالیدل‌اوخورا ډیر خلك‌به‌د(حلقې)له‌پاره‌را غونډیدل چـاې به‌موږبه دیګو کـې ایشولـې، په‌وریجو‌او‌غوښو به سپې‌لاماړه‌وو

خواوس ..... نیولي دي . که یوچا ته دمرستې دپاره ووایو هغه په پوزه کښې ځواب را کړي . دا لا څه کوې چې ځینې خولا دخلکو لوږه، بربند والی او بیکاري له موږ څخه آنګیري او موږ ته د لتانو د جوړولو فابریکه وایي . او داسې فکر کوي چې دا خلك موږ له‌کاره ایستلي دي او زموږ ددوی په غوښو ګذاره ده. توبه خدا یه ! ستا له قهره مو وساتې !

دوران او بنګ سبا سهار په سپیدوکښې له هغه ځای څخه راولاړ شول اومخ په‌کار راغلل. دلته‌مز دوران خرلمانځه مهال‌لاپه کارپیل‌کوي. دو ی د وا ړه په کار بوخت شول . دوران پخپل وطن دار پسې ګوري او هرې خوا ته‌ځارکوي، چې که‌یې په سترګو شو نو سمدلاسه به دبنګ په خصوص کښې ورسره خبرې وکړي. په دغه حال کښې یې هغه ولید او سمدلاسه ورغی او په مینه یې روغبړ ورسره وکړ اوبیا یې په ډ یر عجز ا واحترام ورته وویل :

دلته زموږ او ستاسې د سیمې یوهلك دی، خورا ښه پیاوړی اوپه توره غوښه پټ هلك د ی . دده ډیر زړه غواړي چې دماشینکارانو دشا ګر دانو په ډله کښې شامل شي او په‌هغه شق کښې یوڅه زده کړي

هغه‌خپل تندی په خپلودوارو ګوتو کښې ونیو اووروسته‌له یوڅه چرت وهلو نه یې ورته وویل :

داخو بیبخي نابلده هلکی بنکاري، خو سره له هغه به زه ورته کوشش وکړم .
خو یه یوه شرط ـ هغه دا چې وطن دا ري دې هم په مینځ کښې وي
خو یو څه شیریني به هم راکوي، ځکه چې زه هم په نورو خپرې لګوم
او یوازې زما په واك کې نه ده.
دبنګ سا په دې وخت کې لنډه لنډه کیدله او په خورا بې
صبرۍ یې دده ( هوکی) ته انتظار درلود او ورته وېې ویل :
شیریني به در کړو خودومره چې زموږ له وسه کیږي ـ مثلاً څومره
شیریني؟
هغه ورته وویل ددوه هفتو تنخواه!
ـ یه د یوې هفتې.
زورور هلك یې ! او بل دا چې ددې وطن دار له وطن دارۍ
هم نه شم او بنتلای، ځکه چې په وطن کې یې هرسهار کور و ینم او
هر ماښام یې اور. بنه د ی نه غر مه له ما څخه احوال واخله! ګوندې
یو څه مې کري وي . زما کوته هغه مخامخ ده.
دبنګ له بنو طالعو هغه سري دلسو بجو په شاوخوا کې یوسرى
ورته راواستاوه او بنګ یې هلته ورووست اوسمدلاسه په دې خبر شو
چې د ی دیوه ماشین کار په زیر دستۍ منل شوی د ی.
بنګ له ډیرې خوشحالۍ ګوتې ترنګولې او په بیره یوه میرزا

ته ورغی چې دماشینو نو په شق کې دشمول دپاره یودرخواست ور
ولیکي. هغه ددې کار دکولو اجرت یوغران ځنې وغوښت.

یوه بل سړي بنګ ته وویل ډیرې لوړې طالع دې دي ، کــه
څه هم دماشینکار زیر دستان تنخواه لږه لـري خوتـل بېې لري ، ستا
مزدوري به هره ورځ نه بلکــه هره میاشت درکوي . کــه تـه نـه شې
غیرحاضر نوځوك تا نه غیرحاضر وي او نه دا درته وایې :

( د رځه! نن کارنه لرو.)

هغه ماشینکار چې بنګ یې زیر دست شو خورا جګ اوددیرشو
کالو په شاوخوا کې یوزلمی د ی. ښکلی د ی، خوپه مخ کې بې وینه
نه ښکاري ، یعنی ژیړ بخن غوندې ښکارې ، لوړه پوزه یې ده اوپراخ
تند ی لري، سترګې یې ځرځې دي په کین بارخو باندې یې دتپ
ښنه ده، خورا اوچته غوندې ښکاري.

بنګ دمقرراتو سرهسم داجرایې لـه دفتر څخه دما شینکار په نامه
یوهرقعه وروړه چې هغه یې ور ښکاره کړه نوهغه په داسې حا ل کې
چې پر اوږو یې تپاوه ورته وویل :

ښه راغلې! هیلــه ده چې یووخت ښه میخا نیك شې!

په دې وخت کې دځو نورو ما شینکا رانو شا ګردان هم را غلل
اوپه ځیر ځیر یې بنګ ته کتل . یوه ورځنې پوښتنه وکړه چې آبا کلـه

دي ماشين ليدلی دی او که يه ؟.

هغه هم ورته سروښوراوه اوهم يې په ژبه ورته وويل ( يه ) !

يوه شاګرد وبل ته وويل : ښه خويې دزمري ده که زړه يې هم دزمري وي نو به خورا ښه وي.

بنګ، وليدل چې نن بيا کارکوونکي کښته پورته کيږي اوټول ناآرامه غوندې بريښي. دده خليفه ديوه بل سره خواله کوي اوتر ډيرو پورې يې ورسره خبرې وکړې . ددوی خبرې دماشينانو په درب ودروب کې نه بنګ اوريدلای شي او نه يې بل څوک ، نه څوک ددو ی دخبرو اوريدلو کوشش کوي.

دغرمې په دولسو بجو چې خلک ددوی دډیاره رخصت شول ، نو بنګ له خپل خليفه څخه اجازه واخيستله او دباندې ددوران دليدلو دپاره را ووت. بيا دی او دوران دواړه دباندې سره ولاړل او بنګ هيڅ داسې لفظ نه شوموندلای چې په هغه دوران ته ددې کومک په مقابل کې کور ودانی ووايې، صرف دونه يې ورته وويل :

ملګريه ! زه خودې را نيولم ، خدا ی دې عمررا کړي چې دا ښه دې دروګرڅوم.

بيا يې ورته وويل : نن غرمه زما ميلمه يې ! اوزما دنوي کارپه مناسبت غواړم چې لنده ډودۍ دباندې وخورم. پخپله هم زړه خوږی

شوی یم . لـه هغې ورځې چې لـه کابنې څخه را بیل شوی یم بیا مې لنده ډو ډۍ نه ده خوړلې نن هرڅه زاسره ښایي.

دوی دواړه راغلـل او پـه یوه سموار را ننوتـل ، سماوارچي چې ددوی ښنې ته وکتل نوبې ورته وویل :

کـه څه هم شکر د ی تړول سره پښتانه یو، خودلته هیڅکلـه داسې کسان چې سوداګر او ماړه وي نه راځي اوتل دلته خواران او مز دوران راځي. دا زموږ قاعده ده چې لـه هرچا څخه یوڅه پیسې پیشکي اخلـو نوښه ده چې تاسې هم یوڅه پیسې پیشکي راکړئ اوهرشی چې موخوړ پههغه کې به یې درمجرا کړم. بنګ لـه واره دلسو افغانیو نوټ ورکړ اوبیا ورغلـل په یو کونج کـې دواړه په پلتۍ ( چارزانو ) کښیناستل.

دوی دچاینکي غوښه را وغوښتله اوهـم یې غلمینه ډو ډۍ ورسره وخوړلـه او په خورا بیړه او شوق خپلـو کارو تـه بیرتـه را غلـل.

دده خلیفه دلته له خپلو نورو ملګروسره اندیوالـي لري اووروسته تر ډو ډۍ دتازه تنفس کولو دپاره دباندې وتلـی و. بنګ په بیړه له یوه بل شاګرد څخه دده دنوم پوښتنه وکـړه. هغه ور تـه وویل : مـیرجان نـومیږي، خورا تکـړه سړی د ی، پـه خپل کـار کـې پـوهدی او ډیر خواري کښ هم د ی، زړه سو ی.هم ډیر لري، له هرکار کوونکي سره یـې والله سترګـې لویږي.



بنګ دوې بشپړې مياشتې په همدغه ځای کې تيرې کړلي ، خورا رغد ی شوی د ی. له لسو پنځلسو شپو را ايسته له يوه ميرزا څخه سبق هم لولي. د ی خورا ځيرك د ی او سبق يې ښه زده کيږي اوهم يې بيا پخپله ښه زده کوي .کوم وخت چې دماشين له پاکولو څخه بې غمه شي نو سمدلاسه بې له دې چې وخت په غزلو ويلو اوخوشې خبرو تير کړي، په خپل کتاب بوخت وي . خليفه خو را ځنې راضي دی او تل نګران تـه وايي چې ددې هلك تنخوا ه ورډ يره کړلشي. اوهم ځکه چې د ښه استعداد څښتن د ی ـ د سبق ويلو موقع ورکړله شي.

بنګ اوس ددې په ځای چې په ماجتو نو کې بيده شي اويا ليرې کليو ته ولاړ شي، له نورو ځوتنوشاګردانو سره يې په يوه سرا ی کې کوټه نيولې ده چې دمياشتې پنځه افغانۍ ده ته دهغې ذکريږي له درکه ورو ځي. دده ژوند ترپخوا ډير مرتب شوی د ی ، عزم يــې خورا ټينګ شوی د ی . د ی پخپلـه خپل ځان بدل شوی غوندې احساسوي او هم يې روحيات خورا لوړ شوي دي . ده په دې تقريباً دوو مياشتو کار کې ديوې ورځې تنخواه بايلو دله . له دې کبلـه چې ده ديوې ورځې تنخواه ناحقه له لاسه ايستلې ده ، دوران دهمد رد ی دښکاره کو او دپاره ده‌ته يوسست غوندې منت هم وکړ اوورته يې و ويل چې موږ وتاسې خو غريب خلك يو ، بايد له خپلې کمبلې سره ښې

وغزوو . ته باید هیڅ وخت غیر حاضر نه شې اوتل خپل کارته درومې. دښار ژوند خو پیچلی غوندې دی ډیر احتیاط په کار دی په تیره بیا ستاغوندې زلمیان خوباید په ډیر احتیاط قدم کښیږدي. که نه وي هر څه چې دې ګټلي وي ټول به یوه پلا درڅخه لاړ شي.

بنګ له دې نه چې دده په زیان یې زړه خوږیږي - ده ته یې کور ودانی ووایه او هغه یې دښه نیکمرغه ملګري یوه ښه نښه وګڼله بیا یې په ډیره خوږه او دملګري په لهجه ورته وویل :

وروره! تا نه دي اوریدلي چې دجهان غم نه غم دی. دادیوې ورځې تنخواه خومې څکه بایلودله چې کارګرانو دخپلو کالو دپاره عریضه کړې وه چې دوی ته دفابریکې دڅښتن له خوا دژمي کالي ورکړل شي، خوڅښتن دا خبره ښه نه اومنله اوهغه یې له خپلې ګټې اوخپل اصول سره مخالفه وګڼله . بیاټول کارکوونکي که یې لوی کار په لاس کې و اوکه کوچنی - ټول په یوه پلا له کارخانې څخه راووتل اوکار بیخي وچ ودرید. دفابریکې څښتنانو چې داوضعیت ولید سمدلاسه وارخطاشول اویوڅوکسه یې له موږ څخه وروغوښتل او بې درنګه یې زموږ غوښتنې ومنلې اودټولو دپاره یې کالي راجوړ کړل چې دغه دی اوس یې ته پخپله وینې.

بنګ لږڅه سا واچوله او وروسته له هغه چې دما ښین په تیلو

غوږه خولی یې په تندي سمه کړه وویل :

زما خلیفه خورا تکړه سړی دی؛ په فیل نه دی بند . ده په دې معامله کې لوی او لومړی لاس درلود. نو تا ته خوښکاره ده چې ځینې بد طینته خلك هم هرچیرته موندل کیږي . یوځا دفابریکې ښتنانو ته اطلاع ورسولې وه چې دغه ماشینکار په دې کار کې ډیره برخه اخیستې وه او دکارکوونکو دحق اخیستلو دپاره یې ډیر زیار ایستلی و، نو ځکه یې پر ده اوخوکسو نو رو دیوې یوې ورځې تنخواه ناغه کښینبودله ځنګه چې زه یې دده شاګرد بللم نوځکه یې له ما څخه هم دیوې ورځې معاش دناغې په ډول واخیست ـ پروانه لري دغسې پیښې خو پیښیږي.

دوران په داسې حال کې چې یو موټی وړی یې په او بو کې دمینځلو دپاره غوټه کولې وویل :

که ستا پر ځای زه وای ما به له سړي په دې خبرو کې ګډون نه وای کړی او په یوه کونج کې به مې پهسرلاس نیولی و او په ځا به مې غرض نه درلود،اوس خو زمانه بیخي خرابه ده .په هیچا باور نشته ، سړی په زینه بام ته پورته کړي خو ژر بیا زینه دده له پښو څخه وکاږي او هغه کښته را واچوي چې البته پښې یې غوټې ماتې شي.

دوران بیا پریمنځل شوې وړی په دوارو لاسو کې واخیستلې او

لمرته دغورولو دپاره یې یوورلې . لـه هغې خـوا بیرته را وګرځید
بیا یې خپلـه وینا پسې اوږده کړه :

وېږوهېدې وروره ! لـه دې خبرو او لـه دې کارو لاس واخله !
زه تل په دې ورځو کې لـه تا څخه یوراز او بل راز خبرې اورم . کله
وایې چې دکارکوونکي دلاس‌تنها که تر هرڅه زیاته ده ، او کله بیا
پر بډایانو باندې ښه نه وایې او هغه بې انصافه او دکارکـوونکو دښمنان
ګڼې او دوی داسې لیوان ګڼې چې دانسانانو لـه خولې څخه ګوله
زغلوي . یه وروره ! لـه‌دې خبرو به‌مخ اړوې ! ستایې په بډایانو څه ؟
ستایې په‌سوداګرانو څه ؟ هغه هم دخدای پیدادي ، دوی ته‌هم‌خدای
ورکړې ده . نه دې دي اوریدلې چې وایي : ( با خدا دادګان چې
سیالی ) که دوی ددې نعمتو نوره نه وای نوولې به خدای ورکول
موږ خدای دکار دپاره پیدا کړي یو ـ دادی کار کوو تر خپل حد خو
څوك تیرې نه کوي .

دوران داتولې خبرې په داسې لهجه او په داسې توګـه بنګ ته
وکړې ، لکه یـوځوږ مشروورور چې یې یـوه کشـرورور ته کـوي
او دا نصیحت هم بنګ په ظاهره ښه ومانه او هغه دوران ته‌وویل :

ستا حق پرما ډیر دی ! زه به هیڅکلـه ستا له خبرې څخه نه‌واوړم !
خودومره درته وایم‌چې یوازې په ما نه ورکـه ده اونه ودانه اواوسنی

زمانه دا خبرې تر حد تيري نه ګڼي او يوحقيقت يې بولي.
- په دې حال کې دماشينانوعمومي نګران راغی او ماشينکار ته يې وويل :
- ستا شاګرد بنګ نوميږي؟
- هو صاحبه !
- ته خبر يې که نه چې د ....... صاحب په کوز کې صرف درې تنه پيش خدمتان دي - نو ر ګرده ځنې تلي دي . هغه ورځ چې دلته پر ماشينانو ګرځيدی - دغه‌بنګ يوښه او فعال‌هلك په نظر ورغلی دی او غواړي‌چې هغه او دوه کسه نور دده کره ورواستومه چې هلته کار وکړي ځکه .... صاحب‌هو شکر دی دلوی نامه خاوند دی او لوی وکوچنی شاه وګدا دده په سراچه کې تل ناست وي او له‌خوبه خوري او له خوبه ځنبي، هرماښام يې لس دولس غوري دودی مهمان خانې ته راځي ، والله که غوز په غوز خبر يږي چې‌دا دودی څرنګه دلته پخيږي او څرنګه دلته راځي.
- ښه دی پخپله بنګ ته ووايه ! که‌دده خوښه وي زما خوښه ده ، هرچيرې چې دی آرام وي زه آرام يم. فقط دومره خبره ده چې زما خواري نو ګواکې عبث شوې ، ځکه چې دی ما په ډير زحمت يوڅه روزلی و او دومره اعتبار مې په و چې حدنه‌لري . اوس به

نو بيا بل صحرايي په لار کوم ـ ښه ده نو چاره څه ده؟

بيا خليفه بنگ ته چې لـه نورو شاگردانوسره يې چلـم څکاوه ورزغ کړچې بنگ په بيره دچپل خليفه خواته راغی. خليفـه ورتـه وويل چې نگران صاحب غواړي تا دپيش خدمت پـه حيث د ........ صاحب کره وليږي ! څې ! خوښه دې ده او کـه يـه ؟

نگران سمدلاسه دخليفه لـه خولې خبره واخيستلـه او بنگ تـه يې وويل :

ورور که ! هلته به دې خوړا خولی په غوړو کې وي ، تنخواه به هم لـه دې ځايه اخلې اوبرسيره په هغه دو دی به هم درکوي . زه يقين لرم چې ...... صاحب زړه سواندی سړی هم دی ، گوندې نور کالي هم درکړي او يوښه پټکی به درکړي او يا به ښکلې خولی درراليسي . مطلب داد ی چې نه به په نس خـوار يې اونه بـه پـه تن · سر له سبا چې دلته راغلې زه به دې له ځان سره بوزم او د......... صاحب کره بهدې ورولـم .

بنگ په چرت کې شو ، خونگران سمدلاسه تر وزر ونيو اوپر مټ باندې يې کښيکښ او بيا يې ورته اطمينان ورکړچې په دې کار کې به خوړا خوشحالـهشې اوله ده يې درضايت (هوکی) واخيست. سهار يې اتـه نيمی بجې د ....... صاحب کـره ور ووست او

پیش خدمت باشي ته یې په لاس ورکړ. هغه سمدلاسه یوصافي پـه لاس کې ورکړ اوورته یې وویل: وروره! ورشه دننه دډو ډۍ په خونه کې میز اوڅوکۍ صافې کړه، بیا په ستل کې اوبه درواخله او دهغې خونـې غولـۍ ټول پریمنځه. زه به بیا درشم او هـرڅه به دروښیم. ته ورشه! هغهستل‌واخلهاوهم برس‌اوصابون درسره واخله.

په نهه نیمې بجې ..... صاحب راووت او دډو ډۍ خونې تـه ننوت. دی سهار مهال خپلـه ناشته یوازې کوي اویاکلـه کلـه یې‌زوی هم ورسره ناست وي. دحرم سرای دډو ډۍ میز البته جلادی اوهغه هلتـه دننـه ښځې پیش خدمتانې اداکوي ..... صاحب تـل خپـل سبانارۍدمیلمنو په کوټـې کـې کوي او وایـي چې دا خوندورکوي. دده‌ټبرهم خورا لوی دی اوتل یې یوازې والـی لږڅه خوښ هم وي.

ها! ها! ته راغلـی یې ژړنکیه! ښه شو. او ...، باشي! څرنګـه هلـك دی؟زما په خیال خورا تکړه دی کار ته په‌ټوپو ورځي. یوشی وکړه هغه دا چې دوه جوړه ښه کالـي ورجوړ کړه اوتل دې‌دډو ډۍ په میز دخدمت دپاره حاضر وي.

........ صاحب یوڅه ښکنځل باشي ته وکړل او لـه دې چې‌تل پیش خدمتان دده لـه ناوړې رویـې څخه شکایت کوي ده ته خبرداری ورکړ او په‌ټینګـه یې ورته وویل چې:

دغه نوی زمنکی به په هیڅ ډول نـه ځوروي او ناوړه بې ځایـه تهونګونه به نه وراچوي ، کـه نه ـ ودې پوهیږي چې خورا سخته جزا به ورکړي او هم به یې لـه کاره دا ډول وباسـي چې بیا په عمرو عمرو بیکاره ګرځـي اوخوك به یې نه مزدوروي.

باشي لـه ځان سره بنهاړ شو او تند ی یې خورا تریو نیولی دی په داسې حال کې چې دو دی راوړل بنګ ته ننیي ، لـه ځانه سره په شلیدلو شلیدلو لفظونو څـه وایي :

پی مخي .... خوننیږي ، نوزما خوارکی ...، په ظاهره خـو داسې دروند دروند ځي او داسې معصومه بنه یې ده خوخدا ی ددده په دننه احوال خبر دی اوزه هم تریوه حده پوري .... په حقیقت کـې لیوه دانسان پوټکی په ځا ن راکش کړی د ی .خدای دې پخپلـه جزا ورکړ ي . زموږ خوارانو خو هیڅ وس نـه ورباندې رسیږي. دا شل کالـه مې دده په درګه کې چوپړ وواهه ، هر ډول کارونه مې دده دخوشحالی دپاره وکړل. نوکـه رښتیا درته ووایم دا ډول کارونـه چې هغه هیڅ یوانسان نه شي کولای ـ خو بیاهم راضي نه شـو. ښه یې ویلي دي ( زه سترې ته ناخوښه ) دا هم خـورا په زړه پورې وینا ده چې وایي (بدا ی که شل کالـه په اوږو سپور یوسې خوچې په ځمکه دې کیښود لـکـه کمکی چیغې وهي .)

باشي لږخه په قهر وویل : هلـه گلبته ، سمنده او بنگـه ! بل سبا بیا هغه غټ مـامور صاحب میلمـه د ی ـ دوې ستر گـې به څلور کوئ او ځانونه به خورا کار ته چمتو کوئ.

بنگ په دې خصوص کې چې غټ مـامور صاحب څوك دی بوښتنه وکړه او هغهسوکـه ورته وویل چې دهغه په اوریدو بنگ خورا خوشحالـه شو. دا ځکـه چې د ده خورا زړه غوښته چې چیرته په لارې یا بل کوم ځا ی دغه غټ مامور لهنژ دې ووینې . خوکوم وخت چې بـې د واوریدل چې د ی په کا رکـې ښه بلد نه د ی او دحضور دمیز دپاره به لـه سرکارې هـــوټل څخه پیش خدمتان راځې ـ خوابد ی شو .

دمیلمنو دناستې کوټه خورا ښکلې او په زړه پورې ترتیب شوې وه. برسیره پر دې چې پخپله کوټه ډیره ښه تعمیر شوې وه، دهغې غولـی تهول د( مور ) په غالیو پوښلـی د ی او هم ځا ی پهځا ی پر دیوالوخورا ښکلې قالینچې چې طبیعي اود عیاشۍ ښکلې منظرې هم پکې دي او دآرت او صنعت لـه لحاظه خورا قیمتي اود ستا یلو وړ دي ـ راځوړندې دي . ددې لوېـې او ښکلـې کوټـې د سر خوا ته دشنه بخمل کوچـونه اینبودل شوي دي . په مینځ کـې یـې نسبتاً جگـه غـوندې یـــوه آرام څوکـی چې سور بخمل یـې پوښلی د ی ـ اینبودل شوې ده . دوره خوا ته دوې عادې څوکـی چې هغههم په بخمل پوښلې شوې دي ـ شته .

ددې ټولـې کوټـې فرينچر لهانګلستانه راغلـی دی . خـورا ښکلـې ښکلـې پردې هم ځای په ځای په وروپه خورا زړه ور ونکـې ډول را ځړول شوي دي.

دکوټـې باغچه هم په خورا ښه ډول تزئينه شوې ده. په هره ونـه دبرېښنا راز راز څراغانّ را ځړيږي. دهر ډول ګلانو بو ګرې ته هم څراغونه وروستل شوي دي، چې ددوی ښکلا پهدې شپه کـې عجيبه خوندوره منظره لري. دناشتې دپاره هم په باغچه کـې خورا ښکلـی او مجلـل ځای جوړ شوی‌دی - په تيره بيا دغټ مامور ځای دسپوږمـی سره مخامخ ټاکلـی شوی دی.

بنګ چې داټول ترتيبات او داراز ژوند وليد نو سديـې لـه سره ورته ووت او نژدې و چې خپل ټول حواس بايلـي. ده به تل دانورو پيش خدمتانو ته ويل :

زه چې خدای نه وژلم دغه شيان بـې را باندې ليدل غوښتل ، بيا به يـې يوه بل ملګري ته په يوه صميمی زغ وويل :

زه يـې چې زوکړی‌يم ما ماشين‌ليدلـی‌نهو-تو به! تو به! خدايه! لاری موټرخومـې ليدلـې وو. دوی‌وايـي چې هغه هم ماشين دی - په دې کـې شك نشته چې هغه ته هم حيران شوی خووم، او بيا دفابريکـې ماشينانو ته هم ډير حيران شوم چې څه ډول وړی وريشي او بيا په څه

دول ښکلې تونې پکې جوړیږي. خوسره له دې هیڅ شي زما سد دومره له سره نه و بیولی لکه ددې کوټې ښکلا او ددې باغچې زړه وړونکې منظرې.

تاکلې شپه راغله، له (۷) بجو وروسته دمیلمنو را تګ شروع شو، دګرندیو موټرانو بوغندي دي، خو کله کله بیا آرامه ارامي شي بیاناڅاپه بره په یوه پلاډموټرځ راغونه دکوټې په ننه باغچه کې رڼاوا چوي خو باغچه دومره ارته اوبه د ول دول ونو پټه ده چې دا رڼا پای ته نه رسیږي او پکې دیوې رڼې شمعې غوندې وځلیږي.

میلمانه په درې برخو ویشل شوي دي: هغه مامورین چې ددواړو مشران دي په یوه کوټه کې، هغه کسان چې دشرکتو رئیسان اونوموړي سوداګران دي په بله کوټه کې. دلوړې رتبې مامورین اوله پلارونیکه را ایسې سرداران او ځینې بیخي ماره خلك دغټ مامور صاحب په کوټه کې کښیني. په هغو کسانو کې چې دهرکلي د پاره ولاړ دي د

.... صاحب زامن هم شته. دوی په خورا ښه ډول سره دهرچا مقام او حیثیت پیژني او په دا ډول یې دروغو نو خونوته لارښوونه کوي چې هغه په لومړي ځل هیڅ نه پوهیږي چې ګیر دده له خونې په بله خونه کې هم څوك ناست دي.

د(غټ مامور صاحب) دخونې میلمانه تول دخونې په پای کې کښیني او

دسرخوایي چې هلته یوه نسبتاً جګه او مجلله څوکۍ پرته ده تراوسه خالي ده. لږ څه بنه ناوخته غوندې د (غټ مامور صاحب) موټر راغی، هر کلي ته یې پخپله ..... صاحب راووت او هم نور ګن خلك چې اکثره یې میلمانه وو ـ را ووتل . دلورې او مجللې څوکۍ شاوخوا تقریباً دلسو کسو ځای هم شته ، یعنې کوچونه پراته دي. کوم وخت چې غټ مامور صاحب کښیناست نو یې دسترګو په کونجونو هرې خواته کتل شروع کړل. ده هرسړی په دقت کوت . پخپله دکاله څښتن په دوارو لاسو کې دسپینو زرو سګرت دانۍ ورته راوړه او په خـو را احترام یې هغه ور وړاندې کړه.ده یوه دانه سګرټ ورواخیست او هغه یې دخولې په کونج کې کښیښود او بیادکاله څښتن هغه ور ولګاوه.

(غټ مامور صاحب) چې د سګرټ دودپوکړ ، نویې دمهر اومینې په لهجه زغ کړ: ملا ...... اخون زاده صاحبه! دلته پاس راشه! کښینه! بیا یوه دقیقه وروسته: (سردار صاحبه! راشه! دلته کښینه!)

په دې ترتیب هغه ټول مخور مامورین او متنفذ ملایان ، بډایان خانان اوعالي رتبه مامورین یویو غوښتل کیدل او دغټ مامور لـه څنګـه کښیناستل. دهر یوه نوم چې به یې واخیست هغه به په کالیـو کـې نه ځاییده اوپه خورا سرلوړۍ به ور ولاړ شو او په ادب سره به په هغه ځای کښیناست چې ده به ورته اشاره وکړه.

په بنګ یې خورا ښه او ښکلي خورا پاک کالي آغوستي دي او په یوه لوی پتنوس کې یې دمالتو، آنارو، تما تر و او به په کوچنیو نازکو ګیلاسو کې ایښي اوپه میلمنو یې ګرځوي. که څه هم ده ته یې په کلکه ښوولي دي چې باید هرڅا ته (تیبت)، (سرخورنده) ودریږي اوچا ته مخامخ نه ګوري، خوبیا هم دکلیوالي ژوند اثرات او خپلواکي دده په مغزو کې خوراټینګه ده. هرچا ته چې پتنوس ونیسي- ورته خوازه مسل وکړي چې پرلیدونکي هیڅ بد نه لګیږي.

دباندې په باغچه کې یوه ګوښه یو خورا لوی تجیر وهل شوی دی او په هغه کې ددوډۍ خورا اوږد میز او دل شوی دی. وروسته دمیو و داوبو ترویشلو بنګ ددوډۍ دراوړلو دپاره لاړ. ډول ډول پلاو، چلاو، ترکاریو، کبابو، غورمو اوڅه اوڅه بنګ یوځل بیا له سده وایست. په دې وخت کې ناڅاپه خپل کلي په تیره بیا خپله مور او خویندې دده په خیال کې ورو ګرزیدلې اوپه خپل فکرکې یې هغه لفظونه او کلیمې موندل غوښتل چې په هغه دوی ته ددې منظرې تعریف وکړي. کله له ځانه سره وایې چې کشکې یې دومره قدرت درلودلای چې د وی یې په یوه آن کې دلته راوستلې وای اودا نعمتونه او خواره یې ورته ښوولي وای. ده تل په دې ښوښو خورا نفیسو او ښکلیو غابو او غوریو کې کتل چې که یې چیــرته

دلرګي کاسه ترسترګو شوه چې هغه به څرنګـه ايسي ، خوالبته دی په دې باندې بريالی نه شو.

ميلمانـه تهول په خورا ادب او احترام سره پـه غټ مامور پسې دي څوك چې لـه چا سره خبرې کوي نو هم سرور نژدې کړي او په پسهاري باندې غږېږي دوی تهول ددودی خـوړلو ځای ته راغلـل . عادتاً ددودی خوړلو په ميز باندې هغه کسان خورا ښه معلوميږي ، څوك چې پر ( غټ مامور) باندې ګران دي ـ مثلاً هغه ټل لـه خپل غوري څخه يو څه وريجې او نورشيان پـه يوه جلا غاب کـې واچوي او بيا يې خپل نيتي ته چې پر هماغه ميز ناست وي ـ ور کوي . کـه نژدې و خپله دی يې ورکوي ، کـه نه وي نو پيش خدمت يې ورووړي .

دې ميلمستيا او ميلمنو پر بنګ باندې خورا ژوره اغيزه وکـړه په تيره دده په فکر کـې يې نوي او خوندور امېند ونه پيدا کړل . دې ته يې شوق نور هم ډير شو چې سبق ووايې . ده لـه باشي او هغه بيا دخپل بادار لـه يوه زوی څخه اجازه واخيستلـه چې ټل دې دمـاز يـګر لـه خوا سبق وايي ـ خو دبادار زا من يې پورې خاندي او کلـه کله دهملردی په توګـه ورته ووايي چې:

خوشې خپل وخت مه تيروه ! او خپل مازغه مه خوره ! دا شيان هيڅ په ښه نه د رځي او نه چا ته ورغلـي دي ـ ته زموږ ګران پلارته

وګوره تور په سپین یې نه دي زده ، تر دې وخته پورې یې یوه کوچنی رقعه نه شوای لیکلای. خو ته یې پخپله ګورې چې په سوړ و ډېر خواره لري، غله یې په کندو او روپۍ یې په کڅوړو کې نه ځائیږي په‌سوو نوکران بزګران لري . دغو نه ځمکې خدای ورکړي دي چې په کلو کلو دکنبت او کر وار نه ورته رسیږي. په باغو کې میوې خرا بې شي او یا یې په خپله مخه خلک یوسي ، ځکه چې خورا ډیر باغونه دي او څوك پسې رسیدلا ی نه شي. دا ته یې په خپله وینې چې خلك یې څومره احترام کوي .

وروسته‌له هغه چې سګرټ‌یې ولګاوه او د هغه له دود څخه یې حلقې جوړولې خپلې خبرې ته دا سې د وام پسې ورکړ :

دا به هم درته څرګنده وي چې خورا لوستي خلك او خورا قابل کسب کارا ن یوې خولې مړی ته په‌تپوپوغورځي او اکثره وختونه په وږي نس ګرزي اوژوند یې خورا تریخ تیریږي . په دې ملك کې ډیره هوښیاري ډیره خوا ري ده. په دې‌خبرو پسې به سر نه خوږوې په دې وختو کې ځینې ځینې خبرې‌اورو چې ځینې ښه زړنکي زلمیان یې کوي . مثلاً دوی تل کارستا یې او دا سې وا یي چې دانسانانو ژوند پرکار باندې ولاړ دی ـ که کار نه وي نوهیڅ شی نشته . ته پخپله ګورې چې سره لـه دې چې هیڅ کار مو نه دی کړی او

تيوله ورځ په ميلو او ښکار پسې تللي يو ، خو بيا هم تر هيڅ ځنګر نه يو ، تر څو مو مزغي مزي نه دي ـ دادي شل کسه (تيار سيئ) را ته ولاړ دي .

که څه هم دې خبرو په بنګ باندې اغيزه وکړه خوده دسبق ويلو نه مخ نه واړاوه ، په هماغه مينه يې پر خپل تيا کلي وخت سبق لوست .

يوه ورځ چې له سبق نه راګرځيده خپل پخوانی اشنا دوران يې وليد . ددوران ورور هم ورسره و . دوی دواړو په مينه له بنګ سره روغبړ وکړ او بيا يې په مينه دده احوال وپوښته . بنګ په ډيره مينه ورته وويل :

دکارکوونکي ساده او دميني ډك ژوند مې نه هيريږی . که څه هم دلته وريجې غوښې را رسيږي او کار يې دروند هم نه دی ، خو سره له هغه زه دومره خوشحاله نه يم لکه له ( خليفه ) سره چې وم او بيا له تا سره وم . په تيره بيا دخليفه مير جان ښځې او ورځې خو مې تر ډير و پورې نه هير يږي . ستا او دورور ښه خوښه ښکاري ـ لکه چې شپه مو ښه تيريږي ! .

دوران غاړې تازه کړې اوورته ويې ويل :

موږ تر دا څو ورځو دمخه په هغه ترازوکې کار کاوه چې ته هم را سره وې . ترازو دار زه له ځان سره پر ترازو ودرولم . موږ ته له لوړو ځايو څخه هدايت را کړشوچې په ترازو کې مته ووهو ، يعنې

په ترازو کې چې شل منه وړی تلي یو من ځنې ووهو او کم يې حساب کړو. دا کار موټر ډیرو پورې وکړ. هغه تیره هفته چې ته راغلې مـا غوښتل چې دا خپلـه قصه درته وکړم، خو فرصت مې مونده نه کړ. بیا ځینې خلـك پوه شول او بوې ډلې خلکو لومړی دلته عرض وکړ اوبیایې په حکومت کې عرض وکړ. خدای مې پوه سوې ګوله پورې ایستلې وه چې هغه مشالفت ما ته رانغلی، ځکـه چې هغه خبره په خپلـه لوړو ځایوسره هواره کړه او په دې توګـه هیڅوك تور نه شو. اوس نو پسرلی نژدې دی، ژر به خپلو کورو ته بیرته ځو، مېنه شوي بو، څه پرده مو وشوه. دترازو په کار کې ما تـه دورځې مېنې ډیرې پیسې را لویدې، کـه تو پسرلې پورې دغه ډول وای ـ ته باوروکړه چې د ډیر څه ځښتن شوی به وای، خو اوس هم مېنه دی ترخولـه مې پوړې وورې تيرې دي. باید شکر پر وکاږم هغه کاونه باید را پـه یادکړم چې تول ژمی به مې په خواریو کښلو کې ملاما ته شوه، خو کوم وخت چې به پسرلی شو ـ هغه زه او هغه ناولې ورځ، دیوې ریښکی په رانیولو به مې قدرت نه و. سړکـه خدای کول تول کاله ته مېنه پوبې را نیولی شم. سږمې ژمی هم مېنه سوکـه تیر کړ. کـه مې د ورور دېښې واقعه نه وای نو زېنکیه ځان مې پاچا بالـه پاچا ! دبنګک زړه غوښتل چې تر ډیرو پورې لـه دوران سره وړغیږي

خوده پخوا لاعزم کړی و چې يوه پلاپه بيره ورشي، خليفه وګوري اوبيا ژر بيرته خپل کارته لاړ شي . ځکه چې دما زيګرنی دخوړلو وخت نژدې دی او دچوپړانو باشي به خورا ورته په قهر وي. خو په پای کې د دوران اوږد تقرير دی دې ته مجبور کړ چې دخليفه کټل له زړه څخه وباسي او هغه وخت هم له ده سره په ګړيدو تېر کړي .

- دورانه وروره ! زه هم ستا د دعا له برکته بد نه يم : تنخوا مې تر اوسه پورې نه ده مصرف کړې - زموږ وطن داران چې راغلي ووهغوی وويل چې زما پرموربانديې دوو پور ورو چې سوابيې خواره ( سود خوا ره ) دي او زما درانګ په وخت کې کوزو ملکونو ته تللي وو عرضونه کړي دي. نوما هم ددوو مياشتو تنخوا غونده مور ته ورولېږله چې دسوابيې خورو په خوله کې يې وروا چوي. دا مياشت تنخوا مې لا تراوسه پورې نه ده اخيستې او غوارم چې دهيځ مياشتې داتر څو چې ځم وانخلم.

ته خو پوهيږې چې زما تنخوا خوله فابريکې راکول کيږي ! هغوی خواعتباري خلك دي، که يې هره مياشت وانخلم داريږم چې له لاسه راڅخه ونه وځي . اوه! ما ته اجازه راکړه چې ولاړشم ځکه چې دکاروخت مې دی بيا به يې را باندې غرومبی وي . ښه نودخدا ی په امان! کله کله راځه کورته اوهلته به سره وينو او يوه ګړی به سره غږيږو . !

بنګ په بېړه ددوی له سترګو نهام شو او په منډه دکور خوا ته درومې. دباشي چې سترګې پرې ونښتې تندی یې تریو کړ او له ځان سره یې وویل :

اوس دې نوځه کوم؟ ټول کاروانه موږ وکړل، اوس نو لکه دصاحب‌سکنې زوی راغلې. خدای‌دې‌اوس بیخي راوستلای‌مه‌وای.

بنګ خپل کتاب پرځای کښېښود او په بېړه دچایو څښلو ځای ته ورغی. هلته ګوري چې څو کسه نور میلمانه هم ناست دي او په خپله غلی په یوه ګوټ کښې ودرید. با دار یې نو نور کله لږ څه خوابدی او ماښي چن غوندې ښکاري. دچایو څمڅې دپیالی پرژی باندې ورو ورو ټکوي اوسترګې یې په یو لیرې ځای کې ښخې نیولې دي. بنګ پر له پسې ورته ګوري چې اوس به سترګې وځموي‌او اوس به یې وځموي ، خو دده با نه پربانو نه پسې ربوځې او وچې کلکې یې په هغه ځای کې نیولې دي. ده هغه وخت سترګــــې وغړولې چې یوه بل زیږور خو چاغ سړي چې د .... صاحب سره یې نوي خیښي کړې وه په‌خورا لیزمه ږغ وویل : نوځه وکړو ناچاره یو دغوښو او لرګـي څه سره کیږي.

ده ورته وویل :

تا دکمي‌خـوا را اخیستې ده، دخلکو غمونه دې پر خپلو اوږو بار

کړي دي ، ورك يې کړه ! هر څه چې وشول پروا مه پرې کوه!

ـ ته رښتيا وايې خوخبره داده چې دا سې زمانه شوې ده چې سړی دخلکو لـه خبر وخبره ځان نه شي خلاصولا ی. که په ملك اوښارکې ددو دی لړ والی وليدل شو نو موږ ته ښکنځل کوي اوهرڅوك زموږ غوښې خوري او وايي چې دا دبدايانو له لاسه دي . که تهو کر کميافته شونو هم دب زموږ پرسروي او وايي چې موږ داکارکړی دی . په اصل کې خوخبره ښکاره ده ـ هغه دا چې دهرچا پر خپل مال اوپر خپلو پيسو بدايسو ، خدا ی را کړي. لـه خدايه يې نه غواړي زموږ په .... پسې د ي .

يوه بل ډنگر غوندې زلمي چې مخ يې وچ اوژړ ښکاره کيده ځان سره راتول کړ اوپه خورا زره نا زره يې ... صاحب ته وويل چې دسو داگر و او بدايانو په طبقه باندې پلونه اچول کيږي ـ يعنې دوی لـه دې مسئوليت څخه نه خلاصيږي. خو تاسې پخپلـه انصاف وکړئ او يوه گړی ځان بې طرفه تصور کړئ اوبيا قضاوت وکړئ چې آيادغسې نه ده؟ آيا ستاسې طبقه چې څينې نورې طبقې هم درسره دي دټولو خلکو په ژوند لوبې نه کوي ؟ که يې زره وغوښتل ټول خلـك لـه لوږې او قحط سره مخامخ کوي او بيا کـه يې زره وغوښتل ټول خلـك په دې تهديد وي چې بربند و گرځي او مړي يې بې کفنه ښخ شي.

بنگ دا خبرې په خوند اوریدلې ، په عمومې ډول دغو په مطلب پوهیده ، خو ځینې داسې لغتونه به استعمالیدل چې په هغو دده سر نه خلاصیده . بنګ وروسته پوه شو چې دغه زلمی او بل زلمکی دوا ړه د ....... صاحب نژدې خپلوان دي او په دې وختو کې یې لوړ تعلیمونه پای ته رسولي او راغلي دي ـ نوځکه دوی په دونه لوی زړه له ..... صاحب سره خبرې کوي او دی هم هیڅ بد نه پروړي.

یوبل چوپړچې مخ یې کوي تکولی و او .... صاحب تل ورته (بدمخی ) ویل بنګ ته وویل :

توبه کاږه ! که دوی د ....... صاحب خپلوا ن نه وا ی نو دوی دا ډول آزادي خبرې له .... صاحب سره کولای شوا ی ؟ را دورې شه ! که ..... صاحب ولیدلې چې ددوی خبرو ته یوغوږشو ی یې ـ سابه دې په ولاړه وکاږي . له کومې ورځې چې دغه زلمیان راغلي دي تل ددو دی پرمیز دسبا ناري او هر وخت همدغه خبرې جاري دي.

بنګ په ډیرې حیرانتیا دا وېناوې اورې اوکله کله خوله دا نورو چوپړانو ځخه پوښتنه وکړي چې دا بناغلي خوشکر دی په نس ماړه اوپه تن پټ دي . دوی ولې دمز دورانو او خوارانو خلکو دومره لوری کوي او تل دبډایانو او سوداګرانو له خوا خــولــه وهي اودوی مز دورانو ته مسئول ګڼي او وایي چې ددوی حق یې تر پښو لاندې

کړی دی او دهغوی دزحمت میوه دوی تر وښي .

«بدمخي» پر را ترپ وهل اوورته ویې ویل :

ستاپې په دې خبرو او تقریروخه ؟! دوی خو لوی خلك دي اوسره خپلوان هم دي . څوك دانه ورتــه وايي چې ولې دا دول خبرې کوئ ؟! خو کـه ستا لـه خولې چا واوریـدې نو وپوهیږه چې په هغه آن به دې لـه کاره وباسي او بیا به دې بنی په شا په ختو ښې به ګرځـي . شا وریـچې او څوځې چې دورمیږې هغه وسهه اوشکر وکاږه- پر خپله خولـه او غوږو لاس ونیسه . خو بنګ ورته ورته ویل : خلیفه میرجان ویل چې کارګران او بزګران باید په خپل زور خانونه دبدایانو لـه ظلـم څخه خلاص کړي.



دبنګ مـور تر ډیـرو پورې دبنګ احـوال نه درلود اوخـورا غمجنه وه، خو کوم وخت چې ددوی له خپلوانو څخه یوسړي څلو رسوه (۴۰۰) افغانـی دبنګ لـه خوا ورکړې، تهول کاله اوحتی ددو ی په خپلو خپلوانوسانته وتله اوهر چا په دې چې بنګ پر ښه «خواری» پیښې شوی دی- خو شالي کوله. مور یې په خورا خوشالـی سره هغه خط چې بنګ لـه روپیو سره را استولی و، ماجت ته ور وور او ملا ته یې ورکړ چې ویې لولي. ویل کیږي چې نوی ملا په خط لیکلو اولوستلو کې خورا

پیاوړی دی . هغه چې خط وړ انیست اوتقریباً پنځه دقیقې یې هغه پرلـه اړاوه - وویل چې دا خومیرزا یې خط دی او میرزایې خطونـه خوراګران وي. دومره ځنې معلـومیږي چې زوی دې خوراکلـك جوړ دی او پرښه خواری پیښې دی . که خدای کول خورا ډیرې روپۍ به درته را شیوه کړي. که یې خط ملایې وای سمدلاسه به مې درته لـوستی وای.

دبنګ مور بې لـه کوم ځنډ نـه درې نیم سوه (۳۵۰) افغـا نۍ دسوایې خورو کره وروړې او په داسې حال کې چې غاړه یـې هسکـه نیولـې وه ، دیوه سوایې خورما ینې ته یـې وویـل :

خدای مې دې بې زویه نه کوي، دغه‌دی خوري ! یوځه روپۍ خومې درته راوړلې اواوس هیله ده چې په دې سره ژمې اوسړوکې به مې کښته پور ته نه زغلـوئ او دمحصلانو لـه لښتې به مې باسئ. زوی مې شکر دی تکړه سړی دی ، پاته روپۍ به هم‌خوراژر درکړي. تاسې موږ سا اچولو ته پریږدئ ، هرڅه به‌آسانه شـي ، کـه مـوتر خوږ ګوتـې ونیسئ نوپوهیږئ چې نه به تاسـې ته څه درجوړ شي او نه بـه موږ پر دې لاس ومومو چې تاسـې ته یوڅه درکړو.

سوایـې خورله‌دنه پررا زغ کړه‌اوددې چې څو روپۍ یې‌راوړي دي پوښتنه ځنې وکړه. بیا یې په‌خورا نـاوړه اوزږه زغ ورته‌وویل :

په دونـه لړو لړو پیښو زما غاړه نـه وزي. ادې جانـې ! مـوږ اروېدلـي دي چې زوی دې څلورسوه (۴۰۰) افغانی راليږلي دي - بايد تولـې ما ته راکړې . ته چې درې نيم سوه ما ته را کوې اودغو نه هغه بل ته ، نور پوهيږه چې زموږ پور څنديږي او بيا يې گټه در باندې اوړي ، چې اداکولی به يې نه شې - او بيا به مودې ته اړکړې چې پخپل حق درسره جنجال وکړو.

دبنگ مورپه ډير عجزورته وويل چې : هغه بل مې بيا کښوي او وايـي به چې زماخو هم پور درباندې و ، ولـې دې ما ته هم يوڅه را نه کړ؟ نو ته چې دا وايې چې دا پيسې ستا په پور کې هيڅ نه معلوميږي او زموږ پيتی نه سپکوي، نو حساب را سره وکړه چې ستا څورا باندې وې ؟!
او ولـې داپيسې زموږ بارنه سپکوي . ستا اصل پور څو شلـې و؟
- ادې ! ستا حق دې خدای نه را باندې خوري - خدای دغوته روزي را کړې ده چې ښه يې خور و اوښه يې آغوند و. نوکـه مـې درښتيا وپوښتې ! دغو نه لرم چې ددغه کوچنی زوی،زوی يې لانـه شي خلاصولی. يعنی دلمسي مـې لابس دي. نوستا غوښو ته به مو ولـې پتيلې وې . گوره ! ښه واوره ! ما دولس نيم شلـې يوه پـلا در کړې او دولس نيم شلـې مـې بيا درکړې ، چې تولـې پنځه ويشت شلـې يا پنځه سوه افغانـی شي. ته په خپلـه ناسته وې چې دا پيسې مـې به

لس منه غنمو درسره ماتې کړې ، چې هرکال به لس لس منه غنم گټه راکوې - تیر پسرلی موو عده ورسیده، خوتاسې ځان په یوه خواکړ. په پای کې دې زوی وتښتید اوزموږ حق یې را نه کړ. له ټولو خلکو دولس منه غنم اخلو خوما ستاسې لحاظ وکړ اولس منه مې در څخه وغوښتل - دا ځکه چې بنگ له خولې مات هلك دی، کله کله چې بار بوتښي ورته ووایو راوړي یې اوهم ژرندې ته درومي. نوادې ! چې دغه پسرلی راشي نوپوره دوه کاله وځي او ددوه کلو خوشل منه غنم کیږي. ته پخپله فکر وکړه چې من په پنځه ویشت افغانی درسره مات کړم - بیا هم زما حق پنځه سوه افغانی کیږي چې دا آندازه روپی په دې لږ شي باندې نه پرې کیږي. بنه داده چې زمالاس بیخي له گریوانه وکاږې اوهغه یولاس پریږدې . د اصل سر یې زه پروا نه کوم. دومره سوی سړی هم نه یم چې اوس درته ښې وخرم چې هله! ژرکوه! ماته اصل سرهم را کړه! یه- ادې! هغه چې دې هر وخت ومونږ رایې کړه! په بله ژبه له سر سره یې کار نه لرم بربې راکوه. !

سوایې خور دخپل دې تقریر اثرات دبنگ دمور په تندي کې کتل او په دې چې دا میرمن په دې«حقانه»حساب باندې قانع شوه او بلکه ځان یې خورا ملامت گاڼه چې ولې یې ددې مسلمان پور نه

دی ورکړی - خورا زړه ورشوا او خپلې خبرې یې دغسې پسې اوږدې کړې :

زما سره معامله په ټول دیار کښې هر چاته ښکاره ده، زه خوداسې نه یم لکه دا نور: هغوی چې کوم وخت یو ډیر لږ سری مونده کړي او هغه دیوځه لوږې ګټې ورکولو وعده ورسره وکړي، نو که یې پیسې په صندوق کښې تیارې نه درلودې، نو سمدلاسه هغه پوروړي ته چې موده یې پوره شوې وي ورشي او د سوتې په زور پیسې په جوړې کړي . که هغو پیسې نه درلودې دغولي تغربې راټول کړي او یابې لوغزه ځنې بوزي او کمکیان یې وچ حلق په ډګر پریږدي او هم له کوره یې هیڅ خیر هیچا ته نه وروځي. په بله ژبه سپی یې ترکوره په غپ تیر یږي. مګر زه تل دبابا فقیر ترڅنګه کوم . په میاشت کښې یوه پیسه او یا دوې پلاماجت ته غرې راوړم، مسافر ته شلومبې او ډوډۍ ورکوم. لنډه دا چې که له تاسې ښخه ګټه کوم، یوڅه پر تاسې بیرته خرځوم داسې نه کوم لکه دا نور چې پنځه واره ګوتې په خوله منډي.

مقصد - دې سوابې خواره په دې کښتو پورته او په دې لنډو اوږدو دبنګ دمور له ګوتو درې نیم سوه افغانۍ ټولې واخیستلې او بیابې دپنځوسو (۵۰) نورو افغانیو پوښتنه ځنې وکړه. هغې ورته وویل: دملک هم تل غړومبۍ وي او وابې چې دومره روپۍ بې

زموږ په سرپريکړې دي. کـه هغه ترلاس تېښتګه ونيولـم اونـه يـې پر يښودم - دا پنځوس افغانـۍ به هغه ته ورکړم . خوکـه هغه ډيراصرار ونه کړ او نه يې څوړولـم ، نو په دې پيسو باندې يوڅه جواري اخلم . اوپه پسرلـی به يـې دعيال نفقه کړم. دا توزړه وباسه چې داپنځوس افغانـۍ به په هيڅ ډول درنه کړم. دهغه بل پوروړي عذر به مـو لاهم ته کوې او هغه ته به داسې وايـې چې وډربزي.

سوايي خوړ په داسې حال کې چې پګړۍ يې لـه سره واخيسته اوکوچنی دلرګي توږه زمونځ يې لـه جيب څخه راوايستلـه اوپه سر زمونځولو يې پيل وکړ وويل :

په تا خوهرڅوك بايد باور وکړي اوهرڅونـه چې تـه پوروې. بايد هغه درته درکړي او درڅخه زړه وهل په کار نه دي - ځکـه چې يوخوښه تکړه زوی لرې ، بل نوخوراښه«لوټونه» لرې - هرلوټ دې دشلو زرو روپو دی. هروخت چې وغواړې هغه ماتـولی شې او هرلوټ چې دې مات کړ - دهرڅو ما غوندې پوروړو غاړه باسې لـه دې جهته بايد داګومان وکړل شي چې هغه بل پوروړی اوياملـك کاکا بايد هيڅ درته ونه وايـي او خپل پور درباندې شميري او بس.

دبنګ مور په ژړغونکي ږغ ورته وويل :

مادا خوب ليدلی دی چې زما دلوښو ولور به هم لـکه زما دپلار

دلوبنو غونډې سوابې خواره خوري . پلارمې د دوی لهلاسه زاره ترقى شو. نه مې هیر یږي کوم وخت چې یې زما په ولور کې ځوښونه او دوې غواوې راوستلې - چا چې دغه مال ر اوستلی و هغه لاپر دو دی ناست و چې بیا سوابې خواره له هرې خوا لکه مچان په انګر را کښیوتل اویوه پسه زغلاوه او بل غوا - او په خپلو منځو کې یې لکه دسپو غونډې سره خوړل . پلار مې ددې حال په لیدلو بومونهی خاورې شو او هم دې چې ده ته هیڅ په لاس ورنغلل او وور عیال یې ورته وزی و، خورا ناوره اغیزه پر وکړه او خوارکی فقط درې شپې ناروغه و او په یوه عالم ارمان کې یې پور پریکړ اوبلې دنیا ته ولاړ ...... دځنکدن په وخت کې یې دا ویل : زمامظلمهدسوابې خورو په غاړه ده. ترڅو چې بووس کیږي له دې خلکوسره به کلکه مبارزه وکړئ . زموږ طالع دې خاورې شي چې بیا ستاسې په بې رحمه ګوتو کښیوتو.

په کوڅه کې ځوزهجوره ده.دازغ دبنګ دمور ترغوږ شو چې ویل یې: (ما اوس دستي ولیدلهچې په دغه کور ننوتله ) سمدلاسه هغه بل سوابې خور په انګررا کښیوت او په داسې حال کې چې له قهرهسورواوشین کیده دبنګ پهمور باندې یې داسې کر یږهورووکړهچې هغه خوارکې پرځای باندې هینبهشوهاولکه دلرګي غونډې وچه کلکه شوه .

ددې سپین سرې خوارکی زبون ووهل شو، په تیره بیا هغه وخت چې خپله لور بې هم له سوایي خواره سره په داسې حال کې ولیدله چې هغه ترمروند نیولې وه او له کوره یې راکش کړې وه، چې درځه! موردې را وښیه ! چې زما حق راکړي. دنجلی خوارکی رنګ هم الوتی و او لکه سپین کاغذ غوندې شوې وه . په کوڅه کې نور واره هم یې راټول شوي وو چې چاخندل اوچاژړل.

- بلادې پردغه بداوکوي تکولې مخ شه! پر یزده دا تنکی نجلی چې نژدې ده له بیرې یې ساوخیژي. خوپوربه دې پر باندې وي وینه خوبه دې نه وي پر باندې ؟

هغه بل سوایي خواره دا پور ته جملې په خورا تهدید کړي زغ ورته کړې، چې هغوی دبنګ په مور باندې سانته ایستله او دې ته بې داجرأت ورکړ چې وروالاړه شي او خپله لور ترمټ ځني راکش کړي او پخپل تهتر پورې یې ونیسي او پر بار خوباندې یې ښکل کړي .

دبنګ مور دواره سوایي خواره یوځای مخاطب کړل او ورته وبې ویل : زوی خومې هم دغه پیسې را لیږلې وې. اوس تاسې سره پورې جوړشئ چې کوم یو یې اخلئ او یا یې سمې نیمایې کړئ . لومړي سوایي خواره لږ څه په قهر دبنګ مور ته مخ راستون کړ او ورته وبې ویل :

په خپلو پیسومې ولې لـه خلکو سره په شرکې اچوې ؟ خو پوره
مې درباندې و چې یوه برخه دې را کړه اوبلـه برخه لاپاتې ده.
زما یې لـه نورو خلکو سره څه چې ورسره جوړ یږم؟
دویم سوایي خور چې لـه دې قصې خبرشو ـ خورا پرلـــه
وا یشید او لـه لـومړي سوایي خـواره څخه یې غـوښتنه وکـړه :
په هره توگه چې وي باید دا پیسې له ده سره نیمې کړي. سره د دې چې
دده پور نسبت ولومړي ته ډیـر هم د ی ـ او گته یې هـم لـه ډیـرې
مودې نه ده ورکړ له شوې ، بیا هم د ی په دې رضا شو چې دجنجال دمخ
نیوي دپاره څه چې « کوندې » را وړي دي دواړه یې لـکه وروڼـه
سره نیمې کړي. خولومړي سوایي خواره په جدي او لوړ زغ ورته
وویل : تا نه دي اروېدلي چې وایي (تاروبومرغه دی چې چاونیو
دهغه د ی) نواوس زما خپلې پیسې زه تا ته نه شم درنیمې کولای ـ ښه
داده چې ددې کوندې دزوی تر راتگ پورې صبر وکړې ، هغه چې
هر څه راوړل ، هغه به سره وویشو.
ددو ی دواړو خبره خورا سره اوږده شوه اوتږدې وو چې پـه
غاړو کې سره لویدلي وا ی. دویم سوایي خور ورغی او « خان » یې
خبر کړ. هغه دواړه سره کښېنول او ورته یې ویل : یو لـه بلـه مه سره
خورئ ، هیڅوك دبل چا رزق نه شي خوړلای. نه مودي اروېدلـــي

چې وايي ( رزقونه لـه ازلـه دي) بيا ددوارو کار يوشیدی . کـه تاسې سره بې اتفاقه شواست، نوو پوهیږئ چې ګټه خـولاځه والله کـه په دې کلي کې ژونـد وکړئ ، ځکـه چې داټول ( بر بند کونـي) او( خواستغي) درته خوليمولي دي . ستاسې جګړه او بې اتفـاقـي ددوی په ګټه تماميږي. زموږ بيخ به لادرسره وکاږي.

لومړي سوايي خواره چې روپۍ يې تر ګوتو کړې وې خان ته سترګـه ووهلـه او په اشاره سره يې يوځه ورومنل . نو هغه پـه داسې حال کې چې يـوه خاشـه يې را واخيستلـه او غـاښ يې پـه تـومبه خپلـه خبره دا ډول پسې اوږده کړه :

اوس چې کونـدې روپۍ ......... ده کـره ورورې دي نو ته خدای ته صبر وکړه، دی هم له تا نه دی ليرې ـ چې وبې خوري ګواکې تا وخوړلې.

دويـم سوايي خواره چې وليدل ( خـان )هم دده پـرخوا شو نويـې دبنګ مورته ورويل :

والله چې ستا لـه غوښو خوروپۍ جوړې کرم. لومړی خوهغه پنځوس افغانی چې سپمولې دې دي راکړه! بيا نو دا نورې هم لـه هره ځايه چې وي راموندې کړه. کـه نه وي دخدای شريعت ته دي بيايم او هلته خوبه يې را شميرې لکـه .....

دبنګ‌مور خوارکی دپسرلي لوزه او حتی خو استغوالی ددې سوابې خواره پربرګو سترګو اوله پرله پسې اصرارونوماو لرګیو تکولو بنه وبلل او ورغله ، له خپلې غوټې څخه یې هغه پنځوس (۵۰) افغانۍ هم ورته راوړې او سوابې خواره ته یې خوله کښې ورواچولې. سوابې خواره چې هر څومره پرله وارو له ، خوبل بوغران نه شو په جوړ. بیا یې یو بنه غټ چرګ چې مور اولو بنو دې ته ساتلی و چې کوم وخت بنګ له مسافرۍ راشي نو په لومړۍ شپه به یې ورحلالوي ـ ونیو او په تخرګ کې یې ټینګ ونیوه.

ـ بنه ده نو دا چرګ خو والله که درپریږدم! تا چې تولې روپۍ هغه بل ته ورکړې نو دادې جزا ده چې دغه چرګ به درڅخه ورم او نن شپه به میله باندې کوم.



دبنګ ژیر مخ ، بې نوره سترګې او دنګره بنه بنه خورا بنکلې واوښتله . دده مخ اوس په وینه شو ، دا څکه چې په نس مور شوا و هره ورځ بې خورا بنه تیربد له ، مابنام به هم تود پروت و . دی په کور دیر پریشانه دی او تل دهغه چرت وهي . په تیره چې اوس پسرلی هم بیخي را نژدې شو ، دبنګ په زړه کې د مور اوخویندو دلیدلو هوس خورا دیر یږي. خپل پخوانی ملګری دوران کله کله وینې.

ددوران وضعیت هم اوس تر پخوا ښه شو ی د ی . هغه هیڅ وخت لـه بنگ څخه دځپل زړه حال نه پټوي اوهر څه چې پیښ شوي وي هغه ورته وایي . دوران اوس یوه ځانته کر بهه کوته کړې ده. د ی اوورور یې دواړه دهغه ترازو کار کوي . یوه ورځ یې بنگ ته وویل :

چې خدا ی یې درکوي نونه دې پوښتي چې دچا زو ی یې؟ داسې وزلـه مې وشوه چې کـه خدا ی کول بیا به زه دخو اریو او هر دم شهید یومخ ونه وینم ـ ځکه چې ددې تـرازو په کار کـې ښه گولـه را لوېږي، ځکـه چې هره پلاچې پر تله مټ ووهم خورا ډېرې وړې وگټلې شي چې په‌دې نسبت زما برخه ښه را کوي .
یوه‌پلا خوخلك‌وپوهیدل اوعرض‌یې وکړ‌چې‌هغه... صاحبَ دفع‌کړ. بیا څو پلاخلـکو عرضونه وکړل، خو دپیرانو ددعا لـه برکته وا لله کـه زموږ پر .... صاحب هیڅوك بـریښ‌کـولای شي. سخیان خدا ی نه خواروي .کـه څه هم د ی خودومره سخي هم نه د ی ، خولـکه چې نیت یې ښه د ی. یو پلوسبزه سری د ی. موږ یې ورسره شنه کـړو اولا به موږسې‌شنه کړي.

ورور یې سمدلاسه وویـل : ښه اوکـره وړه خودې خورا ښه شوي دي، تا هم لـکه چې دگټې سوری موند لی‌وي . وروره !

زموږ زیرمه هم خدا ی‌کوي. تل‌خوبه وزي اوبربند نه گرځواو نه به مودبل‌چا په لوښي کې سترگې وي -هرڅو چې دې وسه‌کیږي خپل موټی دکوه چې بیا به په دې وخت‌اوگړی پسې ارمان کوې اوهیڅ به‌لاس ته نه درځي ....

دوران دخپل وروز خبره غوڅه کړه او بنگ ته یې په داسې‌زغ چې لومړی خورا سوکه او بیا یې پسې لوړ کړو ویل :

که مې دربښتیا پوښتې دمزدوری په پیسو والله‌که د چا پرده وشي او هیڅکله به په دې آندازه گټه څوك دیوه ښه ژوند خاوند نه شي. څوکه یووار درحمت دربچه دربانديې را خلاصه شوه او دغسې سوری یې په لاس درکړ - نووپوهیږه چې په لږه موده کې به د دیر شي څښتن شې او بیا چې ژیرپوستین واغوندې او په سیالانو کې په هسکه غاړه کښینې نو هرڅوك به دې خبرې ته غوږ نیسي او درته صاحب ، صاحب به وایي. داوو(۷) وزیرانو عقل به دې بولـي نولکه وروره چې مې درته وویـل اوس لاموټی دکوه ! که نه وي بیا به هیڅ پـه لاس نه درځي. نه دې دي اروید لـي چې (تل خوجمعه نه وي چې حلوا وې ویشلې‌کیږي.)

- دورانه وروره ! زه خو داسې کار نه لرم لکه ستاسې - اوبل دا چې زه هیڅکله نه غواړم چې صداقت پر بزدم- ولې دخپل وروز

وبنې وخورم ؟ څه‌چې مې حق وي او گټلای یې شم هغه را کوي نو نور زه ددوی په دنیا څه غرض لرم؟

ددوران ورور بې حوصلې شو اوپر زغ یې کړه: عجب صادق خومې ته ولیدې! صداقت لـه چا سره ...... صحیح ده چې زموږ کار خولـه ډیرو خلکوسره دی او بیا په تیره دپووندہ و لمن خورا لویه ده او دا کارونه پکې اثر نه لري - زموږ خولې ته هم گولـه ځنې راځي او زموږ دبادار خولې ته هم ، بلـکه دهغه خولې ته خوخورا ډیره اولویه گولـه وررغږي . نولومړی مې درته وویل چې (صداقت لـه چا سره ؟) ته خو باید بیخي دا خبره ونه کړې ، ځکـه ته چې څـه ترینه نروښې هغه دخوار لـه وینو او غوښو نه ځي. ته یوشی جوړوې دداسې سړي څخه یې جوړوې چې هغه دنورو په غوښو پړسیدلی وي. دا متل دې نه دی اوریدلی چې وایي :( دلیوه لـه‌خو لې پښه ختلې هم ښه ده ) یعنې که لیوه یوبشپړپسه وزغلـوي‌نوکـه چا دهغه پسه یوه پښه دلیوه لـه خولې را وکښلـه هم ښه ده.

بنگ دې ته حیران شو چې ددوران ورور دا خبرې چیر ته زده کړې دي - خو په پای کې ښکاره شوه چې د وی هم لـه ځینو لوستو خلکوسره ناسته ولاړه کړې ده.

- یه وروښو ! زه‌په دې بـرخـه‌کې هـیڅ بحث درسره نه کـوم

داسې مې پوه کړئ چې څه وخت به څو؟ او څه ډول به څئ؟ زه که
تلم خوله پوونده و سره ځم، ځکه چې لـه هغې خوا هم لـه دوی
سره راغلم او بنه پېژندګلوي هم پکښې لرم. مثلاً کاتبي نومېزي خوراښه زړه
سواندی، زړه وراو مهربانه زلمی دی . ما خوله هغه سره قول هم کړی
دی چې له دې خوا به درسره ځم. وروسته له یو څه ځنډ نه یې بیا وویل :

وروڼو ! څه ځم چې ناوخته شو، په دې برخه کې به بیا ډیرې
او ښې مفصلې خبرې سره کوو.

بنګ په بیره او ګرځیداو په زړه ورتیا سره دمیلمنو کوټې ته ورغی.
دی تر پخوا اوس ډیر بلدشوی دی، دباشي او یا بل چاځخه نه داریږي.

څرنګه چې وویل شول بنګ تل دتلو پـه فکر کـې دی
تل خپلـه ګټه ګڼـي او هغـه پخپل زړه کـې دډول ډول شـیانو په
رانیولو ویشي. مثلاً مور ته تکری، کمیس او موچنې را نیسي او تل
ددې شیانو قیمت د اتکل په توګـه حسابوي او بیا په همدې توګـه
دخپلـو خویندو دپاره راز راز شیان رانیسي. خو دده پیسې ددې اجازه
نه ورکوي چې دی دډیرو شیانو په رانیولو قادرشـي پـه تیره هغه
وخت چې دپوروړیو پورونه ور په زړه شي نو زړه یې تسیاشي او دهیلو
او امیدونو ګل یې مړاوی غوندې شي او داسې احساس کړي لـکه
چې په رګو کې یې سړې اوبه جارې شي. خو چې بیا خپل لومړنی

فکر چې په کلي کې‌يې کاوه ـ ورپه زړه شي نوخوشحاله غوندې شي ـ ځکه ده هلته صرف دا تر زړه ایستلې وه چې لکه نور خلك یوازې خپل نس واړوي او که یې چیرته پنځه غرانه گوتو ته ورغلل نوخورا به ځان طالعمن گڼي او اوس چې پرښه خوارۍ پیښې شو اوبو څه گوتو ته ورغلل خوشحاله دی . په تیره بیا پردې یې خورا زړه ښه دی چې‌بوڅه سبق یې ولوست او اوس لږڅه په‌لوستلو پوهیږي.

ده داتکی هم په زړه کې احساساوه چې تر‌پخوا یې عمومي پوهنه هم د یره شوې ده، په تیره بیا ځینې ژوندي بحثونه یې چې اروېدلي وو، یوپه یوه یې په زړه کې پراته وو او بې له دې چې دهغو په اصلي او حقیقي مطلب پوه شي، دهغو په شاوخوا فکر کولو باندې به یې خوند اخیست. ځینې وختونه خوبه ده خپل دغه اروېدلي معلومات له نورو سره هم ویل او چې فرصت به یې مونده کړ، نو نورو چوپړانو ته به یې ویل چې :

راشئ د تولنې دښیگڼې په شاوخوا کې خبرې اترې وکړو. ده‌ته په تیره‌دیوه زلمي دې وینا خورا خوند ورکاوه چې :

دمملکت‌دېرې‌اوخورا ښې ځمکې دیوشمیر داسې کسانو په‌لاس کې دي چې هغوپه خپل ژوندهم‌لاس نه‌دی‌ور وړی. که‌دې‌ځمکو ته‌دهغو‌خلکو لاس رسیدلای چې هغه تکره‌دي اوغښتلي متې‌لري ، نو ددې ځمکو

حاصلات او بنه پالنه به یې خورا ډیره شوې وا ی او ډیر بې وزلي اوخواران به هم پرې ماړه وا ی او هم به بې کار موندلا ی.وا ی.
ده‌ته دا ترتیب هیڅ ممکن نه ښکار یده او دا یې هیڅ زړه ته نه‌لویده‌چې په نړۍ کې دې دا ډول ملکونه موجود وي چې په هغو کې دې دا ډول ترتیب وي. خو دا فکرونه به ژر ډېرووړو او کـورتـه دېـوښ وړلو په چرتو کې ډوب شول اوتر ډیرو پورې به یې ورته پام نه و. وروسته لـه ډیرو حسابو اوچرتونو یې دا مسئلـه‌چې دکـور دپاره څه شی واخلي‌فیصلـه کړه او ددې فیصلې سره سم یې هغه شیان رانیول اوټول یې په یوه زاړه خورجین کې چې دیوچا څخه یـې دزاړه په بیعه را نیولـی‌و،ځا ی کړل او تیار بې پخپلـه کوټه کـې کښینښو دل.
بلـه ورځ په کوم وخت چې لـه یوه ځایه څخه را تلی کانـی بې ولید. هغه‌ورته‌وویل‌چې لاپه دې‌دوو درو ورځو کې کـډې راځـې ، کـه دې زړه غواړي چې لـه موږ سره ولاړ شې ، نوځان چمتو کړه! په پسرلي لږڅه سرگرداني ډیره وي، خوپوشی د.ی هـغه دا چې میـږې لـنگې دي اور زه ،اوشیـدې او مستې دبـرې دي. خورا ښه به دې تر هغه ځایه پورې ساعت تیر شي. ....
کانـی په‌خوراحیرانتیا اودتعجب‌په‌نظر ورته‌وگوري دا څکه‌چي بنگث

په دې موده کې هيڅ دلاس او پښو دروند کار نه دی کړی ، نوتر پښخوا چاغ شوی دی اوهم لـه دې کبلـه چې په ژمي په نس موړ واو ښې غوړې غوړې ډوډۍ يې وهلې دي، نوتر پخوا د يـرسور اود صحت ښنتن بر يښي ،چې دکانښي کست ورسره وشواو دځان دپاره يې هم دغه ډول روغتيا اوغښتلو الـي وغوښت.

بنگ دکانښي په دې وضعيت لږڅه په ځان کې ووهل شواو گو مان يې وکړ چې کوم شی يې وران دی، چې کانښی داسې پـه تعجب ورته گوري. بنگ په دې چرت کې وچې کانښي پررا زغ کړل:

وروره! اوس لږڅه بازا ري غوندې بر يښې ! نازك شوی هم يې ! دبازار ډوډۍ دې خوړلې ده! په تيره چې دبډايانو کره د ې شپې ورځې تيرې کـړي د ي، اوس بهد پوونده وژو ندخوندنه درکوي اودومره زحمتونه به په ځان ونه گاللای شې! اوهم داسې ښرگنديږي چې دجيب ښندې ته دې يوڅوغر انه هم درغلي دي. زما په خيا ل پـــه مونږ کې به لاړ شې ! ښرنگـه ؟

بنگ خپل لاس تخرگ ته يوړ او بيا کا نښي ته مسکی شو : دانه څه وايې ؟په دومره لږ موده کې : ما تر اوسه پورې ستا کروټ او غوړي نه هير يږي او ته ما ته بازاري وايې ! ته راځه! دا خبرې به بيا سره سپنو و، اوس به ولاړ شو دهغه چا کره چيرته چې زه کار کوم

چاى به درکرم، شپه به درکرم، سبا به که تلي ولاړ به شي.

بنگک دمخه ، کاني وړسي دبنگک کوټي ته چې نور چوپړان هم ورسره اوسیدل راغلل.

دماخستن د دوى ترخوړلو وروسته بنگک بیخي فیصله وکړه چې له کدو سره ولاړ شي. لومړى یې دا پهزړه کې ورتیره شوه چې لږ څه وختي ځان کورته ورسوي چې دیمه غنم وکړي، خو بیا ورپه زړه شول چې دده نیا یې خپل خرخرخ کړى دى، بل خوک به په یوې کولو کې ورسره مرسته و نه کړي ده خپل دا فکر کاني ته هم ووایه . هغه په دې نسبت چې پوونده دى او دکرنې په کار بنه نه پوهیږى، له مصلحت ورکولو څخه یې عذر وغوښت، خودومره یې ورته وویل: که له ما سره ځې! اوتر هغه ځایه پورې زموږ «اوله» راسره شي! نوستاسي دمنطقي حدودو ته چې ورغلو زه به درته درې لنگې وزې دلوغزې په توگه درکړم. په مني چې کدې کندهار ته شیوه کیږي بیرته به یې راولې اوموږ ته به یې راکړې.

دکاني دې وروستي خبري بنگک داسې تکې ته ورساوه چې سمدلاسه یې ورته وویل :

ځم، درسره ځم ، که «اوله» را باندې شري - هغه کوم، که اوښان را باندې پیایې ! هغه بنه پیولاى شم . زه پوهیږم چې له

کډو سره زما تګ ګټور دی، ځکه‌چې لږ به ناوخته ورسېږم او ترڅو چې پرکښېنو او به اوړي ، زه به هم ورشم . دا چې دکال لوغزه به راکوې دا خو لا بل نعمت شو. بیا بنګ بوې زړې خور جینۍ ته مخه وکړه او هغه یې را واخیسته او کاڼې‌ته یې ورکړه چې ترسر یې کښېږدي او سهار یې وختي له ځان سره یوسي . کوم وخت چې دی خپل‌حساب له با دارسره پرې کړي نوالبته‌سمد لاسه به ورشي او له کډوسره به ځي.

د وې شپې وروسته بنګ په دې خبرشو چې کډې تیرې شوې اوسمدلاسه‌یې باشي ته‌وویل‌چې‌رخصت‌ورکړي. هغه‌ماز یګر دخپل‌بادار یوه زوی ته وویل‌چې‌بنګ‌درومي ، هغه په‌پوزه کې ورته وویل :

هلکه بنګه ! خدای خوار کړې ! اوس غواړې چې له موږ سره بیوفایي وکړی! آه بنه دی چې ځې ځوك دې مخ نه شي راګرزولای ، خو دغونه دې موږ ته ثابته کړه چې تاسې پاسنیان چې په نس ماړه شئ نوبیا په هره توګه‌چې وي خپل ځان ورکوئ . بنه دی ولاړ شه! خوباشي تا ته وا یم! سهار یې جیبونه وګوره او هم یې بستره وپلټه چې کوم شی یې نه وي غلا کړی. په دغو پښتو لوڅو څه باور نشته .

بنګ سهار بیا دفابریکې خوا ته راغی - ده لومړی دماشینکار سره

دخدا ی په امانـي وکړه او بیا را غـی لـه دوران او دهغه دوروړسره یې ولیدل .

دوران ورته وویل :

ستایې په‌مخه ښه! موږ دلته په یوه‌ښه گټه اوښتي یو. داسې گټې او فرصتونه کلـه کلـه سړي ته په لاس ورځـي . نوموږ نه غواړو چې دا دسروزرو موقع لـه لاسه وباسو اوکوږ ته ولاړ شو ـ تـرڅو چې را چلیږي نو دا ترتیب به‌چلـو و ، خو کوم وخت چې را باندې‌تېپه تېغړه شوه البته موږ به هم دخپل تگ دپاره ځان چمتو کړو.



بنگ په ډیره خوښی کـډو ته راغـی‌او دکانښي لـه کالـه سره یې روغبړ وکړ. هر یوه دبنگ په راتگ خوشحالـي وکړه. دکانښي کالـه په مني‌لایو او ښبه نـیولـی و اوهغه ترا وسه پوري ورسره دی نودبنگ کار دښځو او نجونوسره د«او لـه »په شړلوکـې مرسته وه.

شنو رغو، ښکلیو بید یا گـانو چې په تنکیو وښو پټ‌دي‌اودهـر لیدونکـي زړه لـه ورایه وړي په بنگ کـې یوه خوراژوره خوښي ایجاد کړه. په تیره بیا پر شینکـي ښکلـي آسمان باندې داوروسپین‌تکران چې ځینې برخـې یې سوروبره اوښتي‌دي او تـا بـه ویل دپیغلـې نجلـی بارخوگان دي.

پاکې هوا اوپراخ آسمان دبنګ زړه نورهم ورپورته کړا او دېوې ګړی دپاره یې هر څه هیر کړل اوخپل راتلونکی ژوندته یې په خورا باور او هیلو وکتل او دزړه له کومې یې یوه غړانګه وځکوله.

دکابني هغه بل ورور هم غټ مازیګر لا رمه را وستله، نه یوازې دارمه راغله، نورې رمې هم چې سپینې میږې په شنه ورشو کې لکه مرغلرې غوندې بریښیدې - را شیوه شوې. هره رمه له کېږدۍ څخه بنه ارته پنډېږي او میرمنې په خورا فعالیت او اوچتوالي سره لوښي په لاسو کې درمې خواته درومي. هرې میرمنې یا پېغلې دانښې اچولې دي، ته به وایې دپهلوانی میدان ته درومي .ددوی خوشحالي او ښه زړه والی هم بیخي ښکاره دی .ځینو بیا لوی لوی دیګونه په دوه‌و دوه‌و سره‌ا خیستي او دکیږدۍ مخ ته یې سره‌سموي. هره میرمن چې کتوه له شیدو ډکه کړي هغه راوړي ، په دیګوکې یې اچوي او بیا ځي ، بلـه کتوه ډکـوي. دوی لـه هرې میږې څخه فقط یو څو دارې لوشي ، ځکه چې دنورو شیدو دپاره نه ځای لـري اونه یې خوندي کولای شي.

پـه دې وخت کې دوریو یا دلیروګـدې بغارې اوله ورایه دمیږو ( ربا) دلیدونکو زړه دګلـوغوندې غوړوي او خورا خوندوره منظره یې وي.دلیرو مخ ته واړه هلکان اویا غټکی غوندې نجونې لښتې

په‌لاس کې چمتو ولاړې وي او کله کله دورې منډې وهي چې وري دمیزو درمې له خوا ـ را وګرځوي اوکله دورې خورا ډېره ګوزه وي.

په تیره بیا هغه وخت دلیدو او تماشې وي چې شپون اشاره ورکړي چې وري را خوشي کړئ !. وري له یوې خوا منډې ورووهي او میندې یې لـه دابلې خوا په «ریا»را زغلي ترڅوچې ( اوله )په رمې کې توی شي. نژدې تر پنځلسو دقیقو پورې وري ځېلې ځېلې میندې نه شي موندلای اوهر وری کله تر یوې میږې لاندې‌شي چې هغه یې بوی‌کړي‌چې یې ځېل وي نو پرې‌ودریږي او کـه یې ځېل نه وي نو یې په سر ووهي او دا عمل خورا ډېر ځلې تکراریږي.

په دې موسم کې پوونده لوی لوی مزلونه نه کوي، ځکه چې وري یې تنکي وي. بنګښ هم خورا خوشحا له دی چې دځېل کور په خواروان دی او ژر به‌ځپلـه‌مور اوخویندې ووینې دی په دی شپو کې ځېل کهول تل په خوب وینې.

ددغې ورځې په‌مازیګر لږ څه‌فعالیت نورهم ډېرشو. کاښې بنګښ‌نه وویل‌چې به‌مني‌اودوبې دسوداګرومرکې‌اولانجې‌وي، په‌لومړي پسرلي دچل‌یك والاغمونه وي. دازموږ لومړی تاپبی دی چې چل‌یك پریکوو.

دکاښې دکیږدی له څنګه سره یې‌چل‌یك والاو ته ځای پریوه غوندۍ باندې ورجوړکری‌دی. د دروکسو محصلانو غمچینې

په ملاکې دي او سپير چنې موزې يې په پښودي او دچل يك والامخ ته په احترام ولاړ دي. په بيره خان او لس دولس کسه غزيدونکي پر راتهول شول او په خبر واواترو پيل وشو.

بنګ ژر وري او ميزې دکانې دنور کاله په مرسته سره بيلول. په دې وخت کې يوه سړي له غوندی پرراږغ کړه چې ورشه! دخان صاحب له کوره هغه چاينکې چې دپيوچاى پکې پوخ شوی دی له نورو زينکيانو سره را واخله اورايې وړه!

بنګ هم له خدايه دغه غوښتل او په منډه يې هغه کار اجرا کړ او بيا ددوی وخبرو اترو ته ودريد.

په مني بنګ دسوداګرو په ډيرو خبرونه پوهيده. خواوس دچل يك والاپه اکثرو خبرو پوهيږي.

دچل يك والا او ددې خان اوغزيدونکو ترمنځ خورا تودې او سړې خبرې سره وشوې او کله کله خوبه لاسره وګواښيدل هم.

چل يك والاورته وويل چې ترپروسږ کال به مې نه کموئ پروسږکال چې هغه بلماموروهغه ته مولس زره پرپا رچې ورکړې اولس زره مودده«لاس سره» ورکړه. سږکال امر را غلى دی چې چل يك يو په دوه دی . نوبايد دپروسږکال په اساس خوبې راکړئ يعنى شل زره پر پارچه او ........

یوسپین زیري ورته وویل : که یوازې وای او یوازې دلته چل یك ائیستل کیدلای موږ بهشل نه سل زره ورکړي وای ، خو نه پوهیږي صاحبه ! چې موږ لکه او بش خو ځایه حلالیږ و او دهرې منطقې موږ ته سترګې وي.

وروسته له ډیر ولنډو اوږدو دارنګه فیصله شوه :

د ..... خان کلي چې پنځه اتیا کوره لري دولس زره به پر « پارچه » ورکوي - یعني دچا پې رسید په مقا بل کې به یې ورکوي ، چې هغه خزانې ته تحویل شي او دغو نه به هم « لاس سره » یا « لونګې » . .

پر دې فیصله نامې باندې یې د غزید ونکو او دخان ګوتې او مهر ولګاوه او بیا یې ورته وویل :

خان صاحب زه ځم ! دپوونده و یو بل کلي ته تاسې کوز اړولي دي. ما ته اوس دستي څرك احوال راوړ . نوزه بهدایو محصل تا ته درپریږدم چې ته دا « جلا » په توله کړې اوسبا تر اومې غرمې پورې به « داشي » را رسوې . که مو نه کړې برابرې ، نو څرګنده ده چې څلور کسه غزیدونکي او ته به دمحصل سره هلته راځئ او تر هغو پورې به لـه ما سره یاست- تر څو چې روپۍ را کړئ . دامې ګوره بنه درسره وکړل. که بل څوك وای والله که موسبا کـده ځنې کړې وای او دلته به یې میشته کړي وای . موږ خواوس لار چلوو تل مودا په زړه کې وي چې خلك را څخه خوشحالـه وي.

بیا محصلانو دا سوزینان ورته ونیول او دواړه چل یك والاچې دعمومي چل یك تهو لولو غړي دي سپاره شول او په یوه گړۍ کې دجنوب خوا ته له سترگو نهام شول.

بنگ پـه دې لړخه خوابدی شو، ځکه چې ده پـه زړه کې ورتیره کړې وه چې اوس به کانهی له ده څخه پیسې وغواړي او دادرې سوه افغانی چې دپورورړو دپاره یې ساتلي دي ځنې واخلي اوپه چل یك کې به یې ورکړي . خو دبنگ دا تصور ژر غلط ثابت شو اودکانهي مور (کوری) خلاص کړ او لـه هغه ځخه یې دزرې بنی یوه غوټه را وکښله او بیا یې خپله جلا چې (۲۰۰) دوه سوه افغانی وروتلې وې ورکړې.

بنگ ددې عمل په لیدو خورا خوشحاله شو اوټول صورت یې دا ډول سپك شو لکه لـه اوږو ځخه چې یې یولوی پیتی اړولی وي. بنگ خپل زوړ تلتك چې پـه بنار کې یې را نیولی وسره داونې دیوه ځله او خپلې غوټې چې دکور پونې یې په کې دی را واخیستل اوپر هغه ځای باندې یې ځان ته ځای واچاوه، پرکوم چې (چل یك والا) ترمازیگر پورې ناست وو.

بنگ ډیره سوده په خونه کې ویده شوی و اودا پنځه شپږ میاشتې یې دغه راز شپـه نه وه لیدلې .

ده چې پرشنه آسمان باندې ځلیدونکې او روښه ستوري دومره ډیروليدل چې دده سترګو کار کاوه. نوېې بې واکه دا لندی له ځانه سره په خورا شرېولې زغ وویله:

آسمان په ستورو ښایسته دی

لکه دپېغلې نجلی غاړه په خالونه

بنګ تر ډیره پورې ددې پرزړه پورې منظرې سیل کاوه اوخوب یې له سترګو وتښتیده. په تېره په دې تپه تیاره شپه کې چې لاندې دکیږدیو اورونه وېني نوعجب حالت ورته پیدا شي.

داچې کانهي پیسې نه ځنې واخیستلې اوهم په خورجین کې دمور اوخویندو دپاره یو یو کمیس لري او هم یې ژمی په ښه توګه تیرکړ ځان دومره بختور ګڼي چې دهغه ساری په ټوله نړۍ کې نه ګوري له ډیرې خوشحالی یې هره ګړۍ ستونی سره نښت.

څنګه چې سهار کېدې ناوخته باریږي، نو بنګ ترناوخته پورې بیده و. سبا چې بیا ولیږدیدل اوپربله مینه یې واړول نوبیا هغه ډول نور چل یلک والا البته له بلې منطقې څخه ورته راغلل او بیا هغه ډول صحنه جوړه شوه چې په بای کې په پنځه زره افغانی (پارچه) اوپنځه زره «لاس سره» فیصله وشوه.

کانهي دبنګ دپوښتنې په ځواب کې وویل: ترڅو ددې ولایت

ترعلاقې وځو نواووه (٧) ځایه موږ دغه دول چل یکونه ورکوو. وروستی منطقي ته نسبت نورو منطقوته خورا لږچل یك ورکوو، په دې خبرو پسې مه ګرزه ! خپل اورزه اوشیدې ورته وهه!

وروسته تردوه ودغه دول مزلو دپووندو وکډې هغه ځای ته راغلې ، چرته چې بنګک په مني ورسره یوځای شوی و. په هغه مانبام باندې دکاښي کاله دده دجلاکیدو په ویار خورا لوی یه کاسه (شیدې او غوړي )تیار کړل . دکاښي موږ ورته وویل :

بنګه زویه پرموږ مې دې دیر سلامونه وایه! دادرې وزې چې ته پرلوغزه بیایې سبه پام پرې کوه چې درځخه ورکې نه شي ـ دازموږ دکاله اوستاسې دکاله ددوستی نخښه ده. زه اوس دومره لوی مزل نه شم کولای، که نه وی زه هم ستاسې کره درسره تلم اوستا خویندې مې کتلې که مې خو ښې شوی وای نو یوه به مې په مخی درځخه غوښتې وای ؛ ځکه چې خړ، یعنی دکاښي کشرورور خومې لاپراوږ و سپور دی اووادہ به ورته کوم. بل دا چې که هروخت بیا په مني دورې تلې نوزماکور ستا خپل کور وګڼه اوله موږ سره به شیوه شې.

سهار یې یوه پنده پتیره ورترملاکړه اودرې وزې او درې مرغومي یې په لاس ورکړل اوبنګک یې دکورخوا ته رخصت کړ. د بنګک پښې له خوشحالی نه ځمکې ته نه ورځې او بې له دې چې به

خپلـه ستړ یا وپوهیږي ، گوري چې وزې اومرغومي یې سترې کړل شپه یې په یوه کلي کې وکړه او سبا څاښت خپل کلي ته ورغی .

دکلي ځينو کوچنيانو وليد او په منـده ځینې بنگ تـه را غلـل او ځينو دبنگ دکور خوا ته منده کړه چې دده پرمور باندې زیری وکړي يوه کوچني بنگ ته وویل :

زیري مې درباندې تا ته خوبې په مخې کوزده درکړې ده .



بل کال پـه مني بیـا بنگ دخواري دپاره کنـدهار ته رهـي شو .

دا ځل ددیرو خلکو او دیرو شیانوسره بلد او په موټر کې هلته ورسید. دده زړه دکارکوونکو ایښند و نکي ژوند وري و او دخلیفه میرجان خبرې او کره وره یې پهزړه کې نیغ ناست وو.

کوم وخت چې کندهار ته ورسید، نوسمدلاسه دوريوفابریکې ته ورغی او خپل پخوانـي اندیوالان یې مونده کړل. څنگه چې تیر کال یې زیار ایستلی و او خوراکوښښ یې کړی و، نوځکـه دده سواد ښه شوی دی اوهر دول کتابونه لوستلای شي.

ده لـه خپلـو پخوانواندیوالانو سره پهپراخه آندازه خبرې اتـرې شروع کړې، خوپه دې چې دده دپخوا نیو اندیوالانومعلومات دیر شـوي دي او ددوی طبقـاتـي شعـور وده کـړې ده ـ حیـرا ن شـو .

دغرمې د دو ډې په وخت کې دوی یوه ګړی دخوارانو او مزدورانو د ناوړه ژوند په اصلي علت خبرې اترې وکړې . خلیفه میرجان په دې برخه کې مفصله وینا وکړه او دزیار ایستونکو حقیقي دښمنان یې یو په یو ورپه ګوته کړل . ده وویل :

که استثمار ورک شي اویوانسان دبل انسان کار اوزیار ونه تښتوي دنیا به ګل او ګلزار شي اوددا اوسنی ناوړه حالت به چې لږکي (اقلیت) له ډیرې موړتیا چوي . او ډیرکي ( اکثریت) له اوږې اوخواستغوالي دغم شپې اوورځې تیروي ـ له منځه لاړ شي .

سید میرجان داسې پسې زیاته کړه : که دغه دتولید وسایل لکه فابریکې ،ځمکې ، بانکونه او داسې نور دخلکو ترمالکیت لاندې راشي اوپرهغو باندې اجتماعي مالکیت قائم شي ، نوو پوهیږئ چې دا اوسنی اجتماعي ، مادي او کلتوري بدبختی به ورکې شي اوټولنه به دسعادت اوخوښۍ په لور رهي شي.

بنګ دخلیفه میرجان خبره غوږ کړه او دا شې پوښتنه یې ترې وکړه:

دا کار به څوك کوي ؟ او په څه وسیله یې باید وکړي؟

خلیفه میرجان په ورین تندي بې له ځنډه ورته وویل :

دا کار باید هر ډول زیار ایستونکي او بزګران دصنعتي کارګرانو

په مشرۍ دکارګرانو دايډيا لوجۍ په اساس سرته ورسوي. کارګران اوبزګراند تهولنې له پاره دغه ستره وظيفه ترهغو پورې نه شي پرځای کولای ، ترڅو يې دکارګرانو ګوند جوړکړی نه وي او دهغه تر لارښوونې لاندې يې خپلې طبقاتي مبارزې ته دوام نه وي ورکړی. نوبايدتهول زيار ايستونکي دکارګرانو تربيرغ لاندې را تهول شي او دځان دنجات اوښيګڼې له پاره په نه ستړی کيدونکې مبارزې لاس پورې کړي.

خليفه ميرجان خپله عقيده په کلکه داسې څرګنده کړه :

د کارګرانو او بزګرانو حزب بايد دعلمي سوسياليزم په‌اصولو ودرول شي ، که نه نو هرڅه به‌غلط کړي او بدايه طبقه به يې په خورا بې رحمۍ را وپرزوي .

دخليفه ميرجان دغو خبرو په بنګ کې خوراژوره اغيزه وښندله اوده په خپل زړه کې فيصله وکړه چې په دې باره کې د خليفه ميرجان څخه د يرې پوښتنې وکړي.

بنګ دخليفه‌ميرجان په کوښښ‌په فابريکه کې ځان‌ته کار موندلای‌و او تل به يې د کارګرانوسره دحزب په باره کې خبرې کولې اوهم يې دخپلومعلوماتو ددېر ولوله پاره مترقي اجتماعي کتابونه لوستل .

بنګ په زړه کې دفابريکې دښتن څخه خورا بد راتلل اودی‌يې

داسې سرې باله‌چې د کارګرانو غوښتې او وینې خوري . نوځکه هغه‌ته نه ورتلی اوپه جدیت سره په دې بوخت وچې خپل اجتماعي اوحزبي معلومات ډیر کړي.

لږه موده وروسته یوکارګرچې ( ځیر) نومیده او له ده سره یې تل سیاسي او اجتماعي خبرې کولې او ده ته به‌یې کتابونه دلوستلو له پاره ورکول بنګ ته وویل :

دا درې میاشتې کیږي چې زه له تا سره نژدې تماس لرم. اوس ستا دپوهې سویه‌ښه‌شوی ده، باید ته ترحزبي تنظیم لاندې راشې. یعني په یوه حوزه کې منظم کاروکړې اوهلته نور هم‌ځان په حزبي روحیه وروزې . او په دې ډول ځان دې ته چمتو کړې چې به راتلونکي وخت کې نور کارګران وروزې اودوی دې‌ته‌مساعد کړې چې دزیار ایستونکو دنجات او سعادت له پاره حزبي مبارزه وکړي.

بنګ په دې خبره دومره خوشحاله شو چې ماښام تر ډیرو پورې خوب نه‌ورته . ده ځان خورا مهم احساس کړاو داسې فکرونه یې په دماغ کې پیدا شول چې دی یې دې ته متوجه کړچې باید خپل ژوند دکارګرانو اوبزګرانو اونورو زیارایستونکو له پاره وقف کړي .

خوورځې وروسته ددغې فابریکې کارګرانو دخپل ګوندي تشکیلاتو په لارښوونه فیصله وکړه چې دخپل معاش دډیروالي له

پاره لـه کار ځخه لاس واخلـي او اعتصاب وکړي.

ددوی دغه اعتصا ب خـورا منظم اوتـر یوې واحدې لارښوونـې لاندې و. و روسته لـه‌اوو(۷) ورځو دفـابریکـې څښتـن مجبور شو چې ددوی غوښتنـې ومني. په دې اعتصـاب کې بنگ دلومړي ځـل له پاره کارگرانو ته خبرې وکړې اوهغوی یې مقاومت ته‌تشویق کړل. دغه اعتصاب او د هغه بریالیتوب دبنگ لـه پاره یوخورا په زړه پورې پوهنځی واودده لاره یې په ژوند کې وروټاکلـه.

لـه اعتصاب وروسته دفابریکـې دڅښتن دغوښتنې سره سم خلیفه میرجان ، بنگ او دوه کسه نور دحکومت لـه پلوه دمحرکینو په نامه بندیان شول، خو کارگران بیا سره را غونډ شول او ددوی دخلاصولو غوښتنه یې وکړه. کارگرانو وویل چې کـه یې خلاص نه‌کړئ نـو دوی به بیا په اعتصاب لاس پورې کړي.

دفابریکـې څښتن‌مجبور شو چې دپورته کسانو په‌خلاصولو کې جدي اقـدامـات وکـر ي . دې دویم برې دټولو کـارگرانو روحیـه خورا غښتلـې کړه او ددوی د مبارزې‌احساس یې نور هم قوي کړ.

بنگ د دې پر ځا ی چې په پسرلـي بیا خپل کلـي ته لاړ شي، پر خپل کارپاتـې شو او خپلـې سپمولـې پیسې یې مور ته ورواستولـې بنگ په لږه موده کې په حزبي کارو کې لوی لاس وموند او دکارگرو

دګوند یوفعال اوموثر غړی شو. دی څوپلابندي شو، څوهره پلابندي کیدو به دده عزم لاپسې ټینګک کړ.

څوکاله وروسته دبنګک ماینه چې په مخې (بدل) مور ورته کړی وه هم دبنګک په مرسته لوستې اوفعالهښځه شوه او دواړو دزیار ایستونکې طبقې په ګټه ستر سترکارونه وکړل. دوی اوس هم دکارګري ګوند په وسیله ددې مقصد لهپاره په کلکه مبارزه کوي چې په افغانستان کې دې داسې دولت جوړشي چې واګې یې دخلکو په لاس کې وي، په ټولو تولیدي وسایلودې اصولاً اجتماعي مالکیت برقرار شي، اجتماعي ټولې چارې دې دزیار ایستونکو خلکو په ګټه اداره شي اویوداسې خلقي دیموکراسی دې منځ ته راشي چې دخلکو په ګټه وي.

پاي



دځينو لغاتو او اصطلاحاتو توضيح ته موخاصه توجه اړوو:

| لغت | معنی | دمثال له پاره مخ | کرښه |
|---|---|---|---|
| لمونځغاړی | (لمونځ کوونکی) | ۱ | ۲ |
| نيتي | (اخلاصمند) | ۲ | ۳ |
| لمرڅريکی | (پيتاوی) | ۳ | ۵ |
| سره سنې کول | زيات فشار په اچول، بادباد کول) | ۵ | ۵ |
| رکبه | ( کنبی، دفصل ساتونکی ) | ۸ | ۵ |
| مشالفت | (مخالفت، سختي ) | ۹ | ۳ |
| خواستغی | ( وږی، وږستر گی) | ۱۴ | ۵ |
| سنهل | ( زغمل، تحمل کول) | ۱۸ | ۲ |
| سااچول | (دمه کول، هوساکيدل) | ۱۶ | ۱۲ |
| تيره کول | ( روغه کول، بدورکول) | ۱۹ | ۱۶ |
| لوغزه | (لنگه، شيدې ورکوونکې غوا، ميږه) | ۱۸ | ۱۱ |
| بدوړده | (مخالف، په غوسه ، پاربدلی) | ۴۴ | ۱۴ |
| ٘س سره | (حق الزحمه، شکرانه، دمرستې بدل) | ۴۴ | ۱۸ |
| باولـه | (بوله، ساده) | ۵۸ | ۵ |
| اولـه | (دوربراوورغومو رمه) | ۵۹ | ۷ |

182

| لغت | معنی | دمثال‌له‌پاره مخ | کرښه |
|---|---|---|---|
| ترله | (یوتربلـه ، څپلـه) | ۶۱ | ۷ |
| سرونځه | (بده، دېرتاگـه گونځه) | ۶۳ | ۱۶ |
| رغدی | (روغ رمټ، تندرست) | ۹۶ | ۲ |
| اودل | (تنظیمول، ترتیبول) | ۱۰۸ | ۹ |
| «په‌تله‌کې پټه» وهل | (ډنده وهل) | ۱۱۱ | ۱۸ |
| لیزمه | (عاجزي، تأثر - چاپلوسي) | ۱۱۴ | ۱۵ |
| ترونبل | (توزل، ترورل، تښتول) | ۱۱۷ | ۱ |
| ترېبه | ( کلنګ - تلین، کلیزه) | ۱۲۱ | ۱۱ |
| غری | (ویښلي ، دتبې‌غوره دودی) | ۱۲۱ | ۱۲ |
| خولیمول | (زړه نا کرارول، د زړه اوښتل) | ۱۲۶ | ۴ |
| زړه‌تسیا کیدل | (زړه ډوبیدل - بیسده‌کیدل) | ۱۳۱ | ۱۶ |
| دیمه کښت | (للمي کښت) | ۱۳۵ | ۶ |
| دانسی | (داوڼ، تیکری، پړونی، دتیکري پلو) | ۱۳۸ | ۹ |
| چل یك | (پرځازویو اومالونومالیه) | ۱۴۰ | ۱ |
| محی | (بدلـدو اده‌په‌باب) | ۱۴۴ | ۲ |

